افغانستان اقوام او قدرتونه یا اقلاً دمبارزی
اصلی ، واقعی او تثبیت شوی سنگرونه پری یو
کیږی او تولیږی او هیله ده چه نجات ورکونکی شی
او د افغانستان ټول مسلمانان ئې منی او قناعت
پری کوی نه د غسی اتحادونه چه یوانې خو حزبونه
سره یو کړی . د اسلامی انتقام حزب د غسی
یوه واقعی ، اساسی ، وسیع او اسلامی اتحاد
د تحقق او بنیاد د ایښودلو د پاره چه د دوامداره
جهاد واقعی سنگرونه لکه پنجشیر ، هرات
مرکزی مناطق ، لوگر ، خدران ، خوگیانی ، پچیر
اگام ، چپرهار ، علیشنگ او الینگار او کنړ سره یو کړی
هلی ځلی کوی او د پاک خدای په اتکائی د دغه
واقعیت د عملی کولو او تطبیق کولو د پاره پنځوس ،
شپیته زره د شینوارو مسلمانان د حزب د لوړو
غړو ترځنگ و درول چه دا به د لوړو قومونو
قدرتونو ، سمتونو او حزبونو د واقعی اتحاد او
تولید د پاره اولین قدم او حرکت وی او -

انشاالله ټول به دغه ټکي ته راشي .

که چیری دغسی اتحاد مینځ ته راشی بیا به نو دخدای په فضل چه ټوله روسیه هم زمونږ سره مقابله ونشی کړی څو ورځو یا څوکاله عسکر خونئ سپری بوده .

هغه حزبونه چه د روسانو او روسی غاصبو له نفوذ او تسلط نه ځانونه نشی خلاصولی څنګه به وکړی شی چه افغانستان له روسانو نه خلاص کړی او وطنوالو ته نجات ورکاندی .

دخدای رضا ، اسلام ، ازادی ، دوطن نجات صحیح جهاد ، ورورولی او اخوت په یوه واقعی اصلی ، وسیع او پراخه اتحاد کښی دی چه د افغانستان د ټولو مسلمانانو ، قومونو او سمتونو سره وشی واقعی ، عملی ، مثبت او مضبوط وی او هرڅوک چه دغسی اتحاد نه غواړی هغه به یا د روس دګټو دپاره کار کوی ، یا به ئی وطن په کار نه وی او یا به هم له اسلام نه بی خبره وی

دخو حزبونو ترمینځ چه پدی څو کلونو کښی اتحاد مینځ ته رانغی ورو سته تردی هم نه راځی او که راشی هم په دره نغوری ځکه چه د افغانستان د نجات دپاره موثر اقدام نشی کولی .

۱۴ - پدی څه دپاسه دوو کلونو کښی د جهاد خط السیر دا ښئی چه په افغانستان کښی د روسانو، خلقیانو او پرچمیانو په خلاف د مسلمانانو د خوا د مبارزی دپاره څو د قدرت عمده مرکزونه جوړ شویدی یعنی علاوه لدی چه ټول ملت جهاد کوی ، هر چا ټوپک اخستی هر فامیل جنګیږی ، بیشماره جبهی موجودی دی مګر د جهاد عمده مرکزونه څو ځایه دی لکه د هرات سیمه د پنجشیر سیمه ، د مرکزی مناطقو سیمه ، د پاکستان سره د سرحدي ولا یاتو سیمی او داسی نور . په اوله کښی جهاد لدغو سرحدی ولایاتو نه شروع شو او همدغه خط السیرئی تعقیب کړ . د روس دلالانو او د افغانستان د ښمنانو په هر علت چه و روسان داسی پوه کړه چه که دغو سرحدی ولا یاتو په اوله کښی

جنګ نه وای پیل کړای د بورو سیمو خلک نه زړور کیدل او جهادني د روسانو په مقابل کښې نه شروع کاوه که چیرې همدا اوس زابل ، غزني ، پکتیا ، لوګر ، پنجشیر لغمان ، کنړ او ننګرهار غلی شي نوري سیمې څه نشي کولی.

سره ددې چه دا نظر ډیر احمقانه او رذیلانه دی او سرحدي ولایات که جهاد ودروي یعنې خزبونه پرېږدو سیمو کښې جهاد ونکړي لکه چه فعلاً ئې په دې څلورو ولایاتو کښې ودرولی او نه ئې کوي بیا به هم دد غو سیمو غیر حزبي خلک پخپله جهاد پرمخ بیائي لکه چه همدا اوس ئې وینو او که چیرې دوی هم جهاد ودروي د افغانستان د هرې سیمې هره کورنۍ په ځانګړې توګه دې جهاد ته ادامه ورکوي او ترڅو چه یو افغان هم موجود او ژوندی پاتې وي جهاد به د روسانو په مقابل کښې توقف ونکړي ځکه چه هر فامیل له دوی سره جنګیږي اما دغه راز تخریب یا منفي طرز تفکر دا منځ چه یوه خامه دسیسه او توطیه سرحدي ـ ولایاتو ته متوجه ده او د هغه پلان ترڅنګ چه

روسانو د ټول افغانستان د تخریب او تباهی دپاره لری دد غوسرحدی ولایاتو دپاره د اصلی پلان تر څنگ بل پلان هم شته او ترکومه ځایه پوری چه په کنړ، ننگرهار او لغمان کښی لیدل کیږی ددی ولایاتو خلک ورځ په ورځ د روسانو د وژلو په عوض نچیله ددی سیمو د مسلمانانو په وژلو لاس پوری کړی لکه په پیچ، خوگیانیو، چپرهار، سرودات او نورو ځایونو کښی چه د مسلمانانو د وژلو دغه تعداد څو سوو نفرو ته رسیدلی او ډیر کورونه چور او تاراج شویدی او ډیر مندا سلامی اعمال اوس هم هلته جریان لری او دغه راز د سیسی ورځ په ورځ زیاتیږی .

د اهغه خاص او مرموز لاسونه دی چه په هر راز تخریبی فعالیتونو لگیا دی او دامنځی چه ددی ولایاتو دپاره روسان یوخه نورهم لری . په احزابو کښی ورځ په ورځ د غلو او داره ماړانو تعداد زیاتیږی او تنظیم کیږی دا هم د همدی پلان نتیجه ده

د زابل ، غزني ، لوګر او پکتیا خلک تر ډیره حده د ننګرهار ، لغمان ، او کنړ خلکو ته پوه او منوردي او سره اتفاق هم لري او مشران ئې هم په حزبونو کښې رسیدلي خلک دي ځکه نو څوک ئې نشي خطا وېستلی تخریب ددوی په مینځ کښې کار نکوي اما د ننګرهار لغمان او کنړ نه مشران او نه کشران پدغو سیسو پوه دي او نه به پرې پوه شي . ننګرهاریان ، لغمانیان او کنړیان ددغو دسیسو ښکار ولو او ددغو د تخریبونو د جلوګیرۍ دپاره باید په یو مرکز راټول شي او د لوګر ، پکتیا ، زابل او غزني د خلکو تر څنګ ودریږي او ددوی سره د خلقیانو ، پرچمیانو او روسانو پر ضد یو حقیقي او واقعي د جهاد مرکز جوړ کړي ، که دغه خلک دغسې نه کوي ډیر ژر به خراب او برباد شي او په خانه جنګیو به مبتلا شي لکه چه مقدمات ئې لیدل کیږي .

د احزاب باید ددغو تخریبونو د مخنیوي دپاره جداً دغو سیمو ته متوجه وي او ددي ولایاتو خلک دي

تخريب ته متوجه کړي .

۱۶ - زمونږ هغه مسلمانانو ورونو چه په مرکزي مناطقو کښې د جهاد د پرمخ بيولو دپاره د روسانو پرضد کوم ډير قوي سنګرجوړکړي تراوسه د خدای په فضل هيڅ تخريبي لاس هلته ندی ورسيدلی مګراوس څيني هنګامی اوافواهات وائی چه ددغی سيمی خلک فکرکوی چه که دوی په کابل باندی حمله وکړي او ډير تلفات هم ومنی ممکن نورحزبونه اوقدرتونه ددوی په مقابل کښی ودريږی او پوی نږدی چه د مرکزی سيموخلک کابل ونيسی او دافغانستان د قدرت واګی لاس ته راوړی د همدے علت په اساس د مرکزی سيموخلکو تراوسه په کابل باندی اساسی حمله ونکړه اونه ئی کوی که دغه اوازه اوخبره رشتياوی دغه حزب چه د افغانستان د اينده حکومت په باره کښی کاملاً يو مستقل دريځ لری پدغه ځای کښی په ډيرصراحت او قاطعانه توګه د اعلان کوی چه که زمونږ دغه

وروته کابل و نیسی یاد کابل دنیولو د پاره اقدام
وکړي مونږ به د دوی ملا تړ یو ، دوی او د دوی
حکومت په ټوله معنیٰ په رسمیت پیژنو او اطاعت
ورته کوو او غیر له دوی نه که د افغانستان نور
مسلمانان هم دغه قدرت پیدا کړی او حکومت تشکیل
کړي مونږ ئې منلو ته آماده یو ځکه چه مونږ غواړو
هغه د افغانستان نجات دی نه دځان د پاره
پادشاهی .



# له دوستانو نه د حزب توقع

# او دښمنانو ته يې پيغام

۱ - هيله لرو زمونږ د عضويت دکار د تړلو او زمونږ د غړو په مقابل کښې د غير اسلامي او غير انساني رويو نه شخصاً اجتناب وشي که زمونږ کوم غړي د نورو احزابو يا غړو په مقابل کښې غير اسلامي او انساني وضع کوي زمونږ ته دې معرفي شي چه سزا ورکړو او د کوم حزب غړي زمونږ د حزب يا ملګرو په ضد کوم غير اسلامي سلوک او وضع کوي زمونږ به هم دغه موضوع د هغه حزب امير صاحب ته وليکو که چيرې امير صاحب سزا ورنکړه بيا نو زمونږ په هير بو چه د هغه حرکت قصدي او د امير صاحب په امر شوی بيا به دغه حزب د دغه امير صاحب او سري د اصلاح کولو د پاره شخصاً اقدامات وکړي . د احزاب اسلامي او -

انسانی شرافتمند ژوندته ولو که د یوی ورځی دپاره
هم وی دیر قیمت ورکوی نظرهغه بیشرمانه او
نجالت آوره ژوندته چه کلونه دوام وکړی .
٢ - دا حزب محض دخیمی او راشن دپاره مینځ
ته ندی راغلی که حزب څه ولری هغه به پرته
له حزبي تبعیض اوامتیاز نه مستحقینو ته ورکړي
هغه چه نه دودی لری او نه خیمه مګر هغه بلڅه
علاوه ددی نه مریض دی او دوا هم نلری زمونږ
له نظره اولنی سړی نه مستحق دی او باید مرسته
ورسره وشی . خکه نو هیله کوو چه څوک دی یوانځی
دخیمی او راشن دپاره مونږ ته نه راځی دخیمي او
راشن دپاره دیرځایونه شته چه بازارئی سبه ګرم دی .
٣ - دا حزب دخپلو پیروانو دیرولو او ځان ښودلو
ته ضرورت نلری او دکاذب شهرت دلاس ته
راوستلو مشتاق ندی خکه نو دهرراز خلکو او
هرچاپه جذبولو نه خوشحالیږی . مونږ هغو -
خلکو ته ضرورت لروچه داسلام په لاره اود

شوو خلکو باندې دخلقي او پرچمي تورونه ونګول شول اوثروت ، دارائي ، اوناموسونه ئې دجانيانو لاسونو ته ورغلل .

دغه راز قوماندانان چه مسلمانان دخلقي او پرچمي په نامه دمنځه وړي کله چه املي او پيژندل شوي خلقيان او پرچميان ددوی لا سونو ته ورشي د ډيرو پيسو په مقابل کښې هغوی ته دخپلو خزبونو دعضويت کاردونه ورکوي اوګناهونه ئې دپيسو په مقابل کښې بښي اود سلګونو مسلمانانو دقاتلينو او د زرګونو کورونو تالا کونکو نه دغه قوماندانان مجاهدين جوړوي اودا هغه کار دی چه د واقيکا ن پاپانو کول . همدغه عوامل دي چه دجهاد مسيرته تغير ورکوي اوجهاد دخپله خوله دمسلمانانو پرخوا راا ړوي اومسلمان خوږه کيږي .

روسان دخولاړو او طريقونه . مونږ سره مبارزه کوي چه يو ئې هم دجهاد خط السيرته تغير ورکول دي ځکه نو قتلونه اوخونونه هغه هم دمنورو ، بيګناه اوسرشناسه مسلمانانو يا دهغو مسلمانانو چه په

افغانستان نجات او د خلکو د آزادۍ د پاره اولاً سرورکولو او بیا خدمت ته اماده وی . ډیرک ، دزد ، بصیرت او بصارت ولري او معقول نظر راکړی شی . هغه چا چه ټول اسلام او افغانستان تر اوسه پورې ځوواړی په ځو روپیو او ځو ټوپکونو خرڅ کړی دی باید د ا جرائت ونکړی چه مونږ ته راشی . هغه کسان چه په کابل ، کنړ ، لغمان ، سرخرود ، جلال اباد کامی او نورو ځایونو کښی د مسلمانانو پر ضد ـ وجنګیدل ، مسلمانان ئی ووژل او وژنی ئی مونږ ئی له منلو نه جداً معذرت غوارو .

۴ ـ همدارنګه دغه حزب د هغو خلکو د قبلولو نه په کلکه معذرت غواړی کوم چه وروته ، کاکاګان ځامن ، خوریندی ، لونړی او میندی ئی خلقیان پرچمیان یا خلقیانی او پرچمیانی دی . هغه چه په ټول عمر کښی د خپلی کورنۍ د غړو اسلام او اسلامیت ته متوجه نه شول ، وروسته تر دی نشی کولی اسلام ، د افغانستان خلکو یا اسلامی

توڵنې ته خدمت وکړي .

۵ - هغه کسان چه د داود په سپاه انقلاب کښې دد غه حزب د مینځ ته راوستلو د پاره د فعالیتونو مرکز او محور و او دد غه حزب د قتلونو په اثر پېک مسلمانان او وطن پرسته خلک له مینځه لاړل او لاړه د کمونیزم راتلو ته خلاصه شوه چون دی خلکو په واقعیت کښې د کمونیزم د پاره خدمت کړی نو خلکه دا حزب د دغوی د قبلولو نه هم معذرت غواړي.

هغه خلک چه د گوند یو، شخصي او قومي مخالفتونو د پرمخ بیولو د پاره اسلام او جهاد یوه وسیله گرځولې ده ، لافې د اسلام او جهاد کوی او د پرده لاندې د خپلو مخالفینو او شخصي دښمنانو په وژلو لگیادی او د دوی د دغه اسلامی هند حرکتونو په اثر په اکثرو برخو کښې (خوگیاني) جهاد ودرید د دغسې خلکو د قبلولو نه هم دا حزب معذرت غواړي.

۶ - دا حزب د دغو لوړ رتبو مامورینو یعنې معینانو ، ملیسانو او عمومي مدیرانو چه فرضاً خلقیان او -

پرچمیان هم نه دی مګر د ۱۳۵۹ کال د ناسد تر اووی
نیټې پورې ئې په مسلسله او دوامداره توګه د ترکی
امین او ببرک په زمان کښې وظیفه اجراکړیده
چون د خوروپیو یا د محافظه کارۍ په اثوئی د
وطن پرستۍ، شهامت او انقلابي روحیه د
لاسه ورکړې ده، دوی هم دی حزب ته ښتی اتلی
مګر داچه داسی شرعی ثبوت وړاندې کړي چه د دوی
ملا تړ د مجاهدینو سره وشی. همدا راز موږ له
ملګانو څخه هیله کوو چه پخپل اړتګ سره د دی حزب
وخت ضایع نکړي موږ په افغانستان کښې هم
ملګان لیږلي دي او دلته ئې هم وینو چه د مهاجرینو
د غوښو خوړلو ته اماده شوي دي.
د احزب د هغو جریانونو د مقابلې د پاره چه د اسلام
تر شعار لاندې پروې لاندې افغانستان ته کمونیزم
او وستل غواړي مینځ ته راغلی او د افغانستان
د نجات او دیوې واقعی اسلامي جامعی د جوړولو
دپاره کارکوي او د جهاد د تنظیم او د روسانو سره

د دايمي مقابلې د پاره په ميدان ولاړ دی او فعاليت کوی.
له ټولو متبحرو او جيدو مسلمانو علماو ، مامورينو، انجنيرانو ، ډاکټرانو ، صاحب منصبانو ، معلمانو، د پوليسو افسرانو ، قومی مشرانو او د پوهنتون محصلينو ته بلنه ورکوی چه دغه حزب ته چه د افغانستان د خلکو ترټولو ولاړ دی او هيڅ شی ئې فردی او شخصی ندی ، هر راز تصميم او د هغو تطبيق د حزب په اعضاوو پوری اړه لری او د ټولو انسانانو حيثيت او کرامت ورکښې خوندی دی ، راشي او د احزب دی د منورو او پوهو مسلمانانو واقعی مرکز وګرځوی او افغانستان دی د روسانو او ميرغضبانو نه خلاص کړي او تکا دی هميش په خدای ولري.

ومن الله التوفيق

جامعې کښې یو سیاسي او اجتماعي موقف او نقش لري او کولی شي چه ملت رهبري کړي او یو تنظیم مینځ ته راولي. دجهاد خط السیر ته تغیر ورکول دی . دغه راز قتلونه او مرګونه د افغانستان دبچوانیو زمامدارانو، روسانو خلقیانو، پرچمیانو او ددغو قوماندانانو مشترک هدف او مشترک تکی دی او دوی ټول دکارونو چاره او دخپلو اهدافو او مقاصدو پرمخ بیول په قتلونو، خونونو او د افغانستان دقومي منورو او پوهو مسلمانانو په محوه کولو او نابود کولو کښې وینی او ددغه راز خلکو د نیست او نابودی دپاره ئې مـلا وی تړلی دی او همدا وجـه ده چه روسانو ته فرصت ورکول کیږي چه ددغه راز مقصدونو دخاوندانو دپاره هم خدمت وکړي .

د اسـلام دین اصلاً د وژلو او قتلولو دین ندی او هیڅ کله دا اجازه نه ورکوی چه یوه جامعه دی ټوله د وژلو په اثر د مینځه ولاړه شي او بله جامعه دی د وژلو په اثر جوړه شي . د اسـلام ددین یو اساسي او بنیادي فرق له نورو ادیانو او ایدیالوژیو ســره

په همدغه اصل کښې پروت دی چه متاسفانه مسلمان دوله خلکو دخپلو پټو پلانونو د پرمخ بیولو په غرض اود اسلام نه ناخبره خلکو د ناپوهۍ یا د ډوډۍ د بنده ګۍ په وجه تراوسه دغه واقعیت ندی درک کړی او یا نه غواړی چه درک ئی کړی .

که د اسلام دین د قتل او کشتار دین وای وروسته تر دغه چه حضرت محمد مصطفیٰ (ص) د پیغمبرۍ په مقام و ټاکل شو باید د عربستان د هغه وخت د جامعې د ټولو او سیدونکو د قتلولو امرئی صادر کړی وای ځکه د هغې ټولنې اکثریت د رهزنۍ ، فساد ، سرقت ، شرابخورۍ ، فحشا ، زنا ، شرک ، بت پرستي قتل ، قطاع الطریقۍ او د نورو فسادونو په وجه د ومره بې لارې شوی وه چه د اصلاح کولو امکان ئی نه و . په داسې حال کښې چه په افغانستان کښې د مفسدینو تعداد په سلو کښې څو تنو ته هم نه رسیږی

اما حضرت محمد (ص) د خدای پاک غوره کړی پیغمبر له هغې منحطې ، منحرفې او فاسدې جامعې

نه داسی یوه تولنه جوړه کړه چه د محاسنو او حمیده او ما فوله لحاظه د تلونکی بشری تولنو ئی په څه کم ځواږ لسو وسوو کلونو کښی بیا نظیر و نه لیدو .

خلک او تولنه احزابو ته په اطاعت او پیروی وا- داره کول او په هغو بانډی د حزب د مشری او رهبری د نقش د منلو د پاره ، مخینو حزبونو یواځی او یواځی یوه لا رغوره کړیده چه هغه عبارت دی د پوهو او غښتلو مسلمانانو د محوه کولو او د بیسوادو خلکو د حماتی څخه - تر ځو دغه احزاب هر څه ووائی او امر و کړی دغه بیسوا- دان ئی د منلو او بد و د نه تشخیص په وجه و منی او یواځی هم دغه احزاب د اسلام او اسلامیت مرجع وګڼی ځکه نو د دغو وژلو ، مړګونو او قتلونو سلسله به په تولنه کښی د دغه خلکو تر محوه کیدلو پوری په افغانستان کښی ادامه لری او فرق نلوی چه احزاب په افغانستان بانډی سیاسی قدرت ولری او که نه په ربښتیا سره یواځی هم دا بیسواده خلک دی چه دوی د اسلامیت مرجع ګڼی نکه څنګه چه د توی

اخابوبو مشر وویل هرهغه څوک چه په جیب کښې قلم لري نښې کولی نه‌ونږ حزب ته راشي یعنی بیسوادی دحزب دغړیتوب اساسی شرط دی .

همدغه د پوهو او منورو مسلمانانو د وژلو او تباه کولو لپاره روسانو هم غوره کړی ده او خپل تسلط په افغانستان باندې هغه وخت ټینګ بولی چه دغه طبقه د منځه ولاړه شی ځکه نو وطن پرستو مسلمانانو له خوړلو نه د جهاد خوله راګرزول داسلامی انتقام دحزب لوی هدف دی او داحزب غواړی چه جهاد بیرته خپل اصلی مسیر ته برابر کړی او یوازې ئې روسانو او د هغو نماینده ګانو ته متوجه کړی .

داسلامی انتقام حزب د هغو کسانو نه دانتقام اخیستلو د پاره منځ ته راغلی دی چه د جهاد مسیر د روسانو په ګټه څرخوی ، د شخصی انتقامونو په اخیستلو لګیا دی ، د شخصی عقدو د تر سره کولو او په خارجی بانکونو کښې د پیسو د ذخیره کولو او جمع کولو د پاره هلی ځلی کوی او ورځ په ورځ دغه

د تغیر د پارهٔ پلا نونه جوړوی .

۲- د ملت او اخوانو تر مینځ او همدا راز په اخوانو کښې دننه د دیرو د لایلو په وجه یو لوړ والی ، فاصله او بیلتون مینځ ته راغلی دی چه د دغه لوړوالی او بیلتون یو علت هم دغه د قتلونو او وژلو موضوع ده .

بد یا یان د ثروت په خاطر ، تربوران د پخوا نیو خصومتونو په وجه ، سر شناسه او روښنا سه خلک د خپل مقام ، موقف سیاسی او اجتماعی حیثیت او د رهبری د نقش د لرلو په خاطر د روسانو د ښمنان د روسانو سره د د ښمنی د پاره او غیر حزبی خلک د حزبونو د نه غړیتوب په وجه یا د روسانو خلقیانو ، پرچمیانو یا هم د غلو د اره مارو ، شخصی مخالفینو یا هم پخپله د اخوانو له خوا د مینځه وړل کیږی غیر له د غو خلکو نه چه څه پاتی شی هغه به جامعه وی . دا دی د هغی جامعی نمونه او ماهیت چه پټولو د هغه د جوړولو د پارهٔ ملا تړلی ده .

هیڅکله د اارزو ، هیله او علاقه نشته چه افغانستان او د افغانستان خلک دی د غیر حزبی لیډرشپ نه نجات د موی او یادی د روسانو د تسلط نه اووځی ، ملت باید د غلو

د آزادی او د وطن د نجات د پاره هڅه وکړی ، بی حسابه تلفات دی ورکړي ، خپل مال او اولاد دې قربان کړی ، هر راز فجایع دی تحمل کړي اما د رهبری ، نفس ، امارت ، سلطنت ، جمهوریت او پادشاهي دې احزابو اولیډرانو ته پرېږدي او پخپله دې یوازې د احزابو پیرو ، نوکر ، چاکر مطیع او محکوم وی . ملت دې هرڅه خانته واخلي فقط همدا یو امتیاز دې احزابو اولیډرانو ته ورکړي هغه هم هغو احزابو ته چه یو بل ته کافر وائی او یو د بل په مقابل کښې هیڅ کله گذشت نلری او نه هم په واقعی او صادقانه توگه یا د صمیمیت ، ورورۍ ، اخوت او اسلامیت له لارې د اتحاد را وستلو ته حاضر دی ، هیڅ کله یو بل نه غواړی او په زړگونو تا بې یو په بل باندی وهی .

احزاب په خپلو کښې اتحاد نکوی ترڅو چه مشترکاً هیواد آزاد کړي او په انفرادی توگه ئې هم د اقدرت نلری چه ملت او هیواد دی د روسانو د منگولو نه خلاص کړې او که ملت پخپله خانته بل لیډرشپ پیدا کوی او په هغه راټولیږی او وطن ته نجات ورکوی هغه هم احزاب نه خوښوی او علاوتاً

دغسی لیډرشپ محوه کوی ، دمینځه وړی. دغه دی منطق، دغه دی معقولیت ، دغه دی بصیرت ، بصارت دغه دی درهبری ارزښت او قیمت ، دغه دی دامیر مقام او دادی د دوی اسلام اومسلمانی ، وطن دوستی اوملت پروری.

دادی دلیډرشپ په سر هغه منازعه اوجګړه چه دهغه په اثر دافغانستان ملت تباه شو اود روسانو د منږبو لاندی ئې نه جبران کیدونکی صدمات دګالل اولائې هم ګالی دادی دجهان داسلامی قدرتونو موقف چه ددغسی لیډرشپ او لیډرانو ترڅنګ ولاړدی اوحمایه کوی ئې .

په هغه صورت کښی چه ملت داخلی رهبری اولیډرشپ قبول نکړی اویا پادشاهی اخلی ته نه پریږدی هیڅ کله داحق هم نلری چه دوطن د نجات دپاره وجنګیږی ځکه چه جهاد اسلامی دی او اسلام د هغه اودغه لیډر په جیب کښی پروت دی .

دی وضعی ، روش او فکری طرز ملت دجنون سرحدته ورسناوه او تباهی ، بدبختی او اسارت سره ئې مخامخ کړ او په افغانستان باندی د روسانو د تسلط اودهغوی د

بیشماره رذالتونو سبب شو او یا هم هرڅوک چه د اخوانو لیډری نه منی مګر غواړی چه وطن له دغه بحران او اسارت نه خلاص کړی هیڅ کله مسلمان نه دی او ټپله باید ووژل شی، مال ئی تاراج او اولاد دونه ئی یتیمان شی ځکه چه د اخوانو قوماندانان دغسی غواړی. ځنی احزاب او لیډران چه د بنیادی قطب زاده ترچتری لاندی نیوتل اسلامی وملی غرورئی د لاسه ورکړ کله چه قطب زاده د مینځه لاړ دغه سیاست هم بی نتیجی شو، دا دی د دغو لیډرانو د سیاست نتیجه او پخنګی.

هغه حزب چه په یواځی (ترګله) وکولی شی افغانستان ته نجات ورکړی ټخه نور حزبونه به په هغو بانړی راسی حملی پیل کړی او دا سی سبق به ورکړی چه روسان هم دا سی سبق ورنکړی شی او پری به نږدی چه دغه حزب وطن ته نجات ورکړی، ځکه پادشاهی د نورو د لاسه اوځی.

د دغه تحلیل په اثر اصلاً باید افغانستان نجات و نه مومی او د تل د پاره د روسانو د سلطی لاندی وی او دغه د ملت او اخوانو ترمینځ درګیری یا ټپله د اخوانو تر

مینې منا ظمه روسانو ته سپنه معلوم شوی دی څکه نو
اسلامي کنفرانسونه، جهانی کنفرانسونه او هر هغه
کنفرانس چه د افغانستان د نجات او د روسانو د وتلو
د پاره وی اولاً باید دغه معضله او کشاله حل کړی
او هر هغه حزب چه د دغسې کنفرانسونو نظرونه منی او
عملی ئې نه کړی باید د مینځه لاړ شی او هیڅ راز کومک ور
سره و نشی .

د افغانستان د خلکو معضله هم دغه ده او ترڅو چه
دغه معضله حل نشی صلح او واقعی اسلام د افغانستان
خاوری ته راتلی نشی که نجات هم وطن ومومی .

دغه وضعه او مجهول روش، د شک او تردید حالت
او د دغسې نادرستو سیاستونو او پالیسیو تعقیب او
په نتیجه کښې د دغسې دوامداری دښمنۍ پر ضد بیول د -
افغانستان خلک په فریادونو راوستلی چه عکس العمل
ئې د سروبی او لغمان د ولایتونو د خلکو په خوابولو کښې چه
د دغو مناطقو والیانو ته ئې ورکړه وروینو .

دغو والیانو پیغور ددو منطقو کښې د روسته د حکومت

بسم الله الرحمن الرحيم

# ولی د احزب مینځ ته راغی

برسیره پر هغو دلایلو او عواملو چه د دی ضرورت په باره کښی دکودتا های کمونستی در افغانستان جهاد و دست های پشت پرده ، او اسلامی انتقام تر عنوانو لاندی کتابونو کښی د وطن والو ونړی والو د معلوماتو د پاره وړاندی شوی د مهاجرینو پاتید ونکو مشکلاتو ، د جهاد سقوط خاصتاً په سرحدی ولایاتو کښی وروسته د پښتو حزبونو د اتحاد نه او په نتیجه کښی د هغو نادرستو خارجی سیاستونو تعقیب چه د سیاست د ډګرنه د قطب زاده په تللو سره بی ارزښته شو د هغو عواملو د جملی نه دی چه د دی حزب او پارتی د مینځ راتللو سبب شو چه په لاندی ډول د هر یوه په باره کښی ځنی مطالب وړاندی کیږی .

د وضعې د تشریح کولو او د مجاهدینو له معرفي کولو نه خلکو ته مخ واړوه او وئې ویل چه اوس نو تاسو ووائی چه موږ کافران یو او که دوی؟ خلکو سمدستي په ځواب کښې وویل چه نه تاسو کافران یاست او نه ځوی بلکه خلک او ملت کافران دی ځکه چه د شپې د هغوی لاسه او د ورځې ستاسو د لاسه په ډیره بیرحمۍ وژل کیږی او له مینځه ځي، نه د دوی او نه د دوی دارائي او نه ئې اولاد او نه ناموس خوندي وي.

اوس نو د افغانستان د اسلامی انتقام حزب له د غو لسو لکو مهاجرینو نه چه ځانونه حُر، آزاد، عاقل او بالغ وائي یو پوښتنه کوی چه ایا د غې وضعې دیوه نوی حرکت ایجاب کاوه او که نه؟ او آیا د غسی یو حرکت غیر له اسلامی انتقام نه په بل شي سره تلافي کیدلی شو؟

د اسلامی ورورولۍ د روحئې د ایجاد د پاره د متورو مسلمانانو لکه داکټرانو، انجنیرانو، معلمانو، صاحب منصبانو مامورانو، استادانو، قومی مشرانو او د پوهنتون د محصلینو ترڅنګ د عالمانو او مولوی صاحبانو د ودې ولو د پاره

او د وی تول یوه صف او سنگرته د رابللو د پاره ، حزبونه او ملت نږدی کول ، د احزابو نه مغرضین و یستل ترڅو چه د دوی پخپلو کښی سره متحد شی او خپلو خطا گانو ته متوجه شی هغه مهم ضرورتونه وو چه د احزابو ئی مینځ ته راوست پورتنی احتیاج د دی حزب د جوړولو عامل دی او فعلی شرایط ، اوسنی ضروریات او احتیاجات هغه مسلم اسلامی ضرورتونه و چه اسلامی انتقام ئی مینځ ته راووست .

داحزب د افغانستان د خلکو د مینځ نه پورته شو اود هیواد د مسلمانانو په طرفداری شعار ورکوی او عمل کوی ، د هیواد مخالفین تکوی او په اوسینو حمه گیریو کښی په مطلقه توگه د افغانستان د مسلمان ولس ترڅنگ ولاړ دی ، نه د هغو ترڅنگ چه ورځ په ورځ افغانستان د مسلمانانو او ولس نه لری کوی .

۴- د احزابو د قوماندانیو په محاذونو کښی د ننه ورځ په ورځ د خلقیانو او پرچمیانو نفوذ ډیریږی چه دا کار د جهاد د سقوط او د روسانو د دوام سبب گرځی .

داخوا بو قوماندانان له جامعې نه منور ، روښنفکر ، سرشناسه ، متمول ، بادرده او پوه مسلمانان دهغوی د رهبری د نقش د لرلو په خاطر د خلقي او پرچمي په نامه ورېکوي او له مینځه ئې وړي ترڅو کولی شي عوام د خپل نفوذ ، تاثیر او د خپلې رهبری تر قدرت لاندی راولي اما کله چه واقعي خلقیان او پرچمیان د دوی ګوتو ته ورشي بیا نو له هغوی نه مجاهدین جوړوي او د پنځوسو زرو ، یو لکو ، یو نیم لکو یا دوو لکو روپیو په مقابل کښی هغوی ته د عضویت کارډونه ورکوي او د هغوی د وژلو نه چه په سل ګونو مسلمانان پلرونه ئې له مینځه وړی دی او په سلګونو ماشومان ئې بې پلاره کړی دی او په زرګونو کورونه ئې لوټ کړي دی سترګی پټوی .

د سل ګونو او زرګونو ځپل شوو ، په جهاد بوخت او ولاړو شهیدانو د قاتلینو او د سلګونو کورونو د لوټ کوونکو او د لسګونو انجونو د بې عفتۍ د فاعلینو نه د څو لکو روپیو په مقابل کښی مجاهدین جوړول او د هغوی ګناه هونه لکه د ایتالیا د واتیکان پاپانو غوندی ببښل آیا په اسلام

اسلامیت ، بشر ، بشردوستی ، انسان ، انسانیت وطن پرستی ، صله رحمی ، شرف ، ابرو او عدالت باندی پښې ایښودل نه دي او په واقعیت کښې دا کار د ظاهر خان د بیا مینځ ته راتللو د پاره زمینه نه ایجادوی او یا دا چه د افغانستان خلک د جهاد نه نه پښیمانه کوی او پیدی ئې نه متقاعدکوی چه د روس د سلطې منلو ته تیار شي ؟ ایا دا دیوی بلی لاری نه روسانو سره کمک ندی ؟

نه پوهیدل کیږی چه دغو اغایانو دغه خودساخته اسلام له کومه کړی او له کوم ځایه ئې راوړی دی .
ځکه چه په قران پاک او نبوی احادیثو کښې خو دغه راز اسلام نشته دی .

کله چه ګنګه چه ویل کیږی مولوی رحمت ګل دیوه اسلامی حزب قوماندان د میدان په جلریز کښې عاشق نامی د حاجی خدایداد زوی ته چه قوم اسمعیل خیل او د زمنی د کلی او سیدونکی او کلک خلقی دی دیو سلا وپنځوسو زرو افغانیو په مقابل کښې د عضویت کارډ ورکړ او

پیښور ته ئې راولیږه چه ددې عربستان ته ولیږل شو.
که چیری دغه عمل واقعیت ولري نو بیا دی صورت کښې
د تعجب ځای دادی چه ولی ددغې یوه حزب پیروان دغې یو
ضد اسلامی روش او حرکت چه ټول د روسانو په ګټه دی
نه محکوموی ولې دهغه په مقابل کښې نه راپورته کیږی
ترڅو د دغې تخریبونو مخه ونیوله شی ؟ .
همدا راز همدغه مولوی صاحب چه دغه په اعدام
محکوم شوی خلقی ته ئې کارد ورکړ ، شاه محمود نامی
د عبدالحنان زوی په قام علی خیل ته چه هغه هم
د زعیمی دکلی او سید ونکی وا وله چادری سره د روسانو
له محاذ نه په لاس راغلی وا ود مسلمانانو له خوا ونیول
شو . هم د پنځو سو زرو افغانیو په مقابل کښې د حزب
کارد ورکړ او هغه ئې خوشی کړ ترڅو چه د عیسیٰ جان د
زامنو د صبر کاسه ډکه شوه او لکه د تا رنیه وغوندی
ددغه سړی نه د اسلامی انتقام د اخیستلو د پاره
تیار شو او دغه سړی ئې ووژه .
همدا راز دی مولوی صاحب کبیر نامی خلقی ته چه د

میرگل زوی او په خته اسمٰعیل خیل دی او دجلریز په زعینی کلی کښې اوسیږی دیولک او دیرش زرو افغانیو په مقابل کښی د عضویت کارد ورکړ. داو هغه چه دجلریز په کلی پیښی شوي دی معلومه نده چه په نورو ځایونو کښی څه پیښی شوی او څه پیښیږی.

داو د یوه قوماندان ومنع دخلقی اوپرچمی سره اوس به وګوروچه ددغه حزب بل قوماندان د ننګرهار په چپرهار او درودانو کښی د مسلمانانو سره څه راز لوبی کوی.

۲- محمدشفیع د ننګرهار د ولایت د تعلیم اوتربیئی د مدیریت د پلان مدیرچه د رودانو دولسوالی د روغانو اوسیدونکی او د مسلمانانی شهرت ئی هم هرچاته معلوم ود قوماندان



له خوا ووژل شو .

۳- حاجي حبيب الرحمن د چپرهار د علاقدارۍ د - ترېلي اوسيد ونكى چه يوښنه مسلمان وا ودلته به پېښور كېنى ئى ځوحربونو ته ځوانكه روبي اعانه هم وركړه كله چه بيرته كلي ته ورسيد او غوښتل ئى چه خپلي كړې واخلي او بيرته پېښور ته راشي د چپرهار د قوماندان له خوا ووژل شو .

۴- همدراز د پاندۍ د كلي اوسيدونكى د لاجبر رود اتو دولسوالى مربوط د هغه ځاى د قوماندان له خوا ووژل شو چه دى هم يو ښه مسلمان و .

۵- مفتي قدوس د روداتو د كمره اوسيد ونكى هم په همدى ترتيب ووژل شو .

دا وده يوه حزب ديوه قوماندان نمونه د مسلمانانو په مقابل كېنى او هغه و د حزب د بل قوماندان روش د خلقيانو او پرچميانو په مقابل كېنى او داده هغه لار چه د اسلام د پرمختگ ، د افغانستان د نجات ، د روسانو د وېستلو د مسلمانانو د حمائي او د اسلامي جامعي د جوړولو لپاره -

دجهاد تر مفهوم لاندی عملی کیږی اما هیڅ څوک بد
پری نه وائی لکه چه دغه مسلمانان دخدای بندګان نه و
اودی قوماندانانو جوړکړی و چه هرڅه ئی پری وکړه خه ورته
نه ویل کیږی .

داوضع دهر ضمیر او وجدان خاوند ، هر خدای پرسته
مسلمان او مومن باید په ژړا راولی اوددغو په جهاد ولا-
ړو بیګناه خلکو د ناحقو وینو توېولو انتقام ته ئی چه په
سلها وو تنه صغیران او ماشومان ورته پاته شول -
اماده کړی او وینی په جوش او حرکت راولی . همدغه وجه
ده چه ددغسی بی ګناهو مسلمانانو د ملاتړ او د بی وسو
خلکو د حمایئ دپاره دغه حزب مینځ ته راغی او ددغه انتقام
له دغو شرایطو نه نشت وکړ .

اما ډیر د خوشحالی ځای دی چه داسی عالم او متدین
قوماندان هم لرو لکه مولوی شفیع الله چه هیڅکله د اسلام
له چوکاټ نه عدول نه کوی او خلکو ئی د ښه روش ، د ښه
سلوک او ښی مسلمانی ستاینه کوی .

۲ - تر دغه ځایه چه د جهاد د جریان سیر ئی ثابتوی -

پلانونه تل داسې تنظیم او په کار اچول کیږي چه یو یو قوم یا یوه یوه منطقه یا یو یو قدرت او سمت یا هم د جهاد یو یو مرکز په دغه جهاد کښې د روسانو د وحشیانه حملاتو په مقابل کښې جګړې ته دروول کیږي او بیا ئې پرلیښودل کیږي هر وخت چه دغه قدرت او سنګر د مینځه ولاړ او تباه شو بیا د بلې منطقې یا قوم نوبت رارسیږي او - روسانو په دغه جهاد کښې د مجاهدینو له دغه راز پلانونو نه ډیره ښه استفاده وکړه او د افغانستان قومونو ته ئې ډیره صدمه ورسوله ټول سرحدي ولایات په همدغه وجه تباه شول او اوس د دغه ولایاتو د تباهۍ دویمه مرحله شروع شوې ده او همغه داچه کنړ پخپلو کښې، خوګیاني پخپلو کښې سره واچول شول او - اسلامي قومانداناتو خو هم د دوی په مقابل کښې بیله بیله مبارزه شروع کړېده .

همغه شرایط چه د ننګرهار فرقې ، د هرات فرقې او بیدي اواخرو کښې د غزني فرقې د روسانو په مقابل کښې مینځ ته راوستلي وو بیا هم چا ونه غوښتل چه د وغـــو

مساعدو شرایطو نه استفاده وکړي او جهاد په بل ځای کښې شروع کاندی او د روسانو قدرت توټې ټوټې کړي کوم اسلامی او ملی قیام چه د کابل د ښوونځیو انجونو او هلکانو په کابل کښې شروع کړ او کومې قربانۍ یې ورکړي اما څنګه چه لازمه وه د دی قربانیو نه صحیح استفاده ونه شوه او روسان پرېښودل شول چه ارامه د دوی وژلو ته دوام ورکړي . دا رازاقدامات او حرکات سببونه چه علاوه دیره تخریبي لاس نه لور د تفرقې او تبعیض لاسونه هم پدی جهاد کښې ډیر دخیل دي او مرحله یې تخریبونه شروع شوی دی .

۷- د مهاجرینو سره د غذائی موادو او اجناسو د مرستې ترتیب داسې دی چه نورئی مهاجرینو ته څه ندی پریښې د سهیمو کارډ د لاس ته راوستلو یا جوړولو مصارف د هغه عوایدنشې پوره کولی او خبره تر دروسوو روپیو رسیدلې ده او لا هم پورته ځی ترڅو چه هر مهاجر پیسې ورنکړي د غه کارډ لاس ته نشې راوړلی . په سلو کښې پنځه نوی تنه مهاجرین د دغه رشوت د ورکولو توان

١ - که دخو سووحزبی ثنا ویونکو نظر یوی خواته پریږدو او دمهاجرینو کمپونو ته سرورد ننه کړو او وګورو چه دوی په کومو غیر انساني شرایطو کښي ساو باسي ، څه ډوری او څنګه رنځ او عذاب تیروی او یا داچه دا خرابو له څخو خدای ترسو ، پو هوا و غیر منتژ یا طلسم شوو پیروانو سره چه پرته د خدای دد ربار نه نورو ته د تعظیم سرو ننه ټیټوی او پرته دجهان له هست کوونکی اونیست - کوونکی نه د نورو قدرتونو نه ویره او ډارنه لري بحث او خبری وشی او نظر وغوښتل شی په رښتیا سره به دا معلومه شی چه هیڅ یو حزب ، ازاد ، بالغ عاقل او د شرعی تصرفاتو خاوند به هم ددغه - اوسنی وضعی نه راضی نه وی او هر یو به ددغو مظالمو په باره کښی داستانونه لري ، فریادونه به باسی او چغی به وهی ځکه چه دغه وضعه ، لیاره تګ او پیش آمد علاوه لدی چه اسلامی ندی حتی په اکثرو مواردو کښی بشری او انساني هم ندی

نذری او هغه پیسی چه دیوی خیمی د اخیستلو د پاره باید ورکړی شی هم دوه سوه روپی دي او ډیر مهاجرین د دغو پیسو د نه درلودلو له امله مجبوردی په گرمی، یخنی او بازارونو کښی بی خیمی ژوند وکړی. هغه اوره چه په کال کښی دوه دری ځله ځینو مهاجرو ته ورکول کیږی او ځنی نوری شی اخیستی علاوه لدی نه چه له هر مهاجر نه څو کیلو گرامه گرڅول کیږی کله کله داسی ترخه او لواړه وی چه قطعاً نه خوړل کیږی او موږ حاضر یو چه نمونه ئی وښیو. بدغه ساخت او بافت او د مهاجرو د وینو او غوښو په خوړلو او رشوت اخیستلو کښی د هر حزب څو تنو محدودو خلکو د مهاجر ینو د دفتر له مامورینو سره لاسونه یو کړی دی او اخ او بو په یو بل باندی د تفوق طلبی یا د جانب مقابل لوری د شنډولو د پاره اولاً په رشوت لاس پوری کړ او د مامورینو د رشوت معیار ئی څو سوو روپیو ته ورسوه او اوس چه دیو عادی کاغذ د پاره مراجعه کیږی که پیسی نه وی مامورین کاغذ و نه پتوی او د عین کاغذ د اجا کولو د پاره باید هر دفتر ته بیلی پیسی ورکړه شی.

د رشوت خوغیر د هغه نهم بازار تود وو خو کله چه حزبونو د رشوت نوری طریقی هم ایجاد کری او یو دبل په شندولو او شرمولو لگیا شوه نو دی وضعی ددی مامورینو غوا لنگه کره او س حداقل مهاجرینو نه په هره ورځ کښی یو لک روپی رشوت اخیستل کیږی .

ن په اخر ابو کښی د رکشا د خریدار یو نجهاد ، دکورونو داخیستلو او جوړولو جهاد ، د موټرونو د پیداکولو جهاد او په بانکونو کښی د پیسو د جمع کولو جهاد د اسلامی جهاد ځای نیولی دی حتی وئیل کیږی چه یوامیر صاحب په پیښور کښی یو سل او پنځوس رکشاوی لری موټرونه پیسی او کورونه خوئی پر یږده .

هر کله چه د بهرنی ملکونو کوم نمایندهٔ د مهاجرینو د وضعی او حال د لیدلو د پارهٔ کمپونو ته ځی د دغو رشوت خورو غدارانو له خوا مخکښی له مخکښی مهاجرینو ته دستور او اوامر صادریږی چه د دغه نمایندهٔ سره پر ته د اسلحی د نه لرلونه په نورځه کښی و نه غږیږی د مهاجرینو لوږی او لوڅی لغړتوب څخه کوم شکایت ونشی .

همدغه ناخیزه کومکونه چه څینو مهاجرینوته په کال کښې دره درې واره ورکول کیږي دهغه داخیستلو او لاس ته راوړلو ترتیب دومره تحقیرا ووره اوتوهین امیزه دی چه دآب اوعزت خاوندان لوږه تیرولی شی مګر دغسی سپکی سپوری خبری چه کما نږان ئې مهاجرینو ته کوی اوچا دو بیتنام داسیرانو سره هم نکول نشی ئې عملی په طور دمثال داسرائیل نامې کمانډانه خبری مهاجرینو ته دمسلمانی، اسلام او انسانیت نه دومره لری دي چه سړي ئي دلته نشي سنکاره کولی .

هغه اجناس ، اموال چه یاله بهرنیو هیوادونو نه یاهم دپاکستان دسند اوپنجاب له سیمو نه مهاجرینو ته راليږل کیږی بندر په سدر تبدیلیږی اوجنسیت ئې تغیر کوی مثلاً داغوستلو دیرسنه طرس دلته دبوجیو په تات باندی بدلیږی که بزی وریجی وی دلته وررنه پنډری جوړیږی .

نتیجه داچه دمهاجرو دموضوع او مسئلی نه اخبارو اوقدرتونو دپیو غوا جوړه کړیده چه پوله دینا ددوی

په نامه رالوشله کیږی مګردوی ته په سلوکښی ـ
شل هم نه وررسیږی او وړخ په وړخ دغه موضوع
تجارتی شکل پیداکوی، اوداسی بیلا نونه ترنظر لاندی
دی چه مهاجرین دلوړی اوبی اتفاقیو په اثر دغه حد
ته وررسیږی چه وحدت اوقدرت ئی وپاشل شی او
هریو د پاکستان په کوڅوکښی یوی مړی ډوډی پسی
لالهانده اوسرګردانه وګرزی او روسان ددغو
پلانونو طراحانو ته آفرین ووائی .
که دمهاجرینو ومنعی تنظیم او داجناسو اوموادو
توزیع ته سمه او صادقانه توجه نه کیږی اودغه کار
صادقو او امانت دارو [redacted] ته ونه سپارل شی په
ربنتیا به دافغانستان دمهاجرو مشکلات دملګرو ملتو
په مشکلاتو باندی ډیره اضافه ګی راولی اوکه تنظیم بنه
کیږی اوخلک پوه شی څه چه دوی دمهاجرو په نامه ورکوی
مهاجرینو ته رسیږی دوی به نورکومکونه هم وکړی.
مهاجرین په دی ونه پوهیږل چه ولی دحکومت
دلویو کاردارانو اوزمامدارانو هغه لطف اومرحمت

د ورو ماموریتو یعنی کمشنرانو او د پټی کمشنرانو د مهاجرو د دفترونو او د نورو ماموریتو په رویه کښی نه لیدل کیږی او د وی مهاجرینو ته د کرکی او نفرت په نظر گوری ؟

هغه مجاهدین او مبارزین چه د اسلام د دفاع د پاره او د روسانو د وحشیانه تسلط د ختمولو په خاطر چه د پاکستان سرحدات او تمامیت هم د خطر سره مخامخ کوی د پاکستان اسلامی هیواد ته چه نظام مصطفیٰ هم ورکښی جاری دی مهاجر شوی دی او په همدی منظور اسلامی جهاد پرمخ بیائی ، د دوی قوت او قدرت پاشل کیږی او له مینځه ځی . که دغسی یو قوت او قدرت په پاکستان کښی د ننه کال په کال د مختلفو مشکلاتو په وجه او د ډیرو عواملو او مرموزو سری لاسونو په اثر تجزیه کیږی خپل ماهیت او واقعیت د لاسه ورکوی علاوه لدی چه دا به یو لوی تاریخی او اسلامی مسئولیت مینځ ته راولی پاکستان به هیڅ کله بیا قادر نه وی چه د روس د حملی په صورت

کښې یوه بله قوه د هغه د مقابلې د پاره مینځ ته راولې ځکه
چه په دغه خاوره کښې په جهاد باندې یو بوخت اسلامی
قدرت له مینځه پاشل کیږی ، نیست او نابود کیږی او
د ښمن د غښې کولی شی څنګه په همد غه د ښمن ونشي کولی
چه ملي اسلامی قدرت له مینځه یوسی .

علاوه لدی چه د احزابو مشران باید د دغو رشوتونو
د اخیستلو په مورد کښې غلې پاتې نشي دوی ته نه مبنائی
چه د شخصی روابطو د ایجاد د پاره دیو تعدا د رشوت خورو
مامورینو کورونه د معینه نرخ نه پورته په کرایه -
ونیسی او د مهاجرینو د سهمیې نه په هره میاشت کښې
څو لکه روپۍ د رشوتونو له لیارې دغو مامورینو ته
ورکړی . د هر حزب امیر چه د صوبه سرحد د یوه
کاروار کور په کرایه نیولی په هغه کښې همدغه مقصد
پروت دی .

۸ - تردی ساعته څومره اتحادونه چه د احزابو او
لیډرانو ترمینځ مینځ ته راغلی دي ټول یه ظوا هر و بنا
دی او د بهرنی نړۍ نه د پیسو د اخیستلو یا فریبولو

دسیسو، یادغسی نورو عواملو په اثر موجود شوی دی همدا وجه ده چه یوه اتحاد هم دجهاد د پاره مرسته ونکړه بلکه اوسنی اتحاد چه حتی جهاد ته ئی سقوط ورکړ که اوسنی اتحاد واقعاً اتحادوی قدرت، صلاحیت او اختیارات لری اوکولی شی چه خلکوته اسلحه ورکړی ولی ددغسی اتحاد دراتللو سره سم جهاد په ټپه ودریده پیشرفت خوئی څه کوی. داچه په افغانستان کښی جنګ او جهاد روان دی هغه دافغانستان دمجاهدو خلکو کار دی چه دننه په افغانستان کښی اوسیږی او په احزابو پوری هیڅ ارتباط نلری. که دغه اتحاد ظاهری، ساختګی دزمانی دشرم یا نورو فریبونو دپاره وی او اصلاً قدرت او صلاحیت نلری، احزاب څه نه ورکوی او احزاب حاضر ندی چه خپل هرڅه اتحادته تسلیم کړي دهغه اوامرو ته منی او غاړه ورته کیږدی بیا نو ولی په دغه تظاهر باندی پرده اچوله کیږی ولی حقایق له خلکونه پټیږی؟ اما دا اتحاد دمالی کارداران دفتر وائی چه دغه اتحاد هرڅه لري یوائی خوسوه تنه اوږه، په نکونو متره اعلی

تېکوان ، په میلونونو روپۍ ، بوتونه او تیار شوی کالی لري او ټول ئې ساتلي دي . پداسې حال کښې چه ډیر مهاجرین د لوږې وچې ډوډۍ د پاره دربدره گرځي دغه اتحاد کوونکي شوي چه مجاهدینو ته ډیره اسلحه ورکړي .

زمونږ په نظر سرحدي ولايانو کښې د جهاد د سقوط مسئولیت پدې اتومیاشتو کښې مستقیماً د اتحاد په غاړه دی او داچه ددغې پرظاهري ، فرمایشي او تقلبي اتحاد ځومامورینو هریوه ته سړي سرله زرونه تر دوو زرو روپیو پورې معاش ورکوی او د لکونو غریبو مهاجرو سهمیه دخو سوو نفرو جیبونو ته ځي .

دا ټول دلایل او علل بیا هم دا واضح کوي چه دلته لښکرې ، پلانونه موجود دي نظر اسلام ، اسلامیت ، دوطن نجات او دخلکو د آزادۍ ته نور شیان ډیر دخیل دي او نور ملاحظات دخالت لري

دا مې فکر کیږي چه اکثراً ددې ځای دجهاد دپرمخ بیولو قدرت او کنترول د هغو اشخاصو په لاس کښې دي چه په افغانستان کښې ئې هیڅ خپلوان او نږدې اقارب نه دي

پاتې او د اکثرو د فامیلونو سلسله، اصل او نصب او د ا
چه څوک دي له کومې ځایه راغلي دي، ګنګه او مجهوله ده
او انسان د دوی په اسلام، وفا دارۍ، وطن دوستی
او ارتباطاتو مشکوک او مظنون کیږي او نشي کولی چه
حکم وکړي چه دوی د افغانستان اتباع دي که نه.
موږ په افغانستان کښې ډېر مشکوک او مظنون
خلک لرو چه له هغو نه یو هم محمد خان جلالر دی چه
اوس د ډهري حکومت د تجارت وزیر دی. د دی سړي
پلار د شوروی اتحاد نه د فاریاب ولایت د اندخوی
ولسوالۍ ته مهاجرت وکړ او ډېر نږدې اقارب ئې
روسیه کښې پاتې شول. جلالر یو وخت د افغانستان
د مالئې وزیر او د داؤد د جمهوریت په وخت کښې بیا هم
د تجارت وزیر وو چه هرڅه ئې د روسانو په مفاد
پرمخ بیول لکه چه اوس ئې بیائي. د داؤد د جمهوریت
په اخرو شپو کښې یعنی وروستنه د داؤد د وژلو ته
نه دا ثابته شوه چه دی یو پرچمي دی او د سادات
او ملک خالد سره د مذاکراتو اسرار ئې پرچمیانو ته

رسولی دی او د همدی اطلاعاتو په اثر چه داوُد وژل شو او کمونیزم په اصلی شکل لوڅ لغړ افغانستان ته ننوت او س د افغانستان خلک پوهیدلی شی چه دجلا لرکوونکو د روسانو د خدمت او د هغوی د ایډه پلانونو د تطبیق د پاره افغانستان ته استول شوی وو دغسی مشکوک او مجهول عناصر نور هم ډیر دی چه اکثراً د افغانستان نه پیښور ته راغلی او راځی او ته ننوتلی دی . هغه احصائیه او راپور چه تائید شوی ندی وائی چه په حدود د (۴۸۰۰) نفره خلقیان پرچمیان په پیښور کښی د مجاهدینو او مبارزینو تر مینځ شته او منظم فعالیت لری . دغه خلک د جهاد د سقوط او د کمونیزم د تسلط ، د روسانو د دوام ، د مشرانو د بی اتفاقی ، د تشکیل اتحادونو مینځ ته راتللو ، د روسانو د پیسو د ویشلو او د افغانستان په گوټ گوټ کښی د جبهو دلیاری د سنو مسلمانانو د وژلو او د خپلو مسلکی ملگرو د حمائی او د جذبولو د پاره په کار او فعالیت بوخت دی

اوپرته له بې حیثیتۍ ، سپکاوی او تحقیر نه د مهاجرو
د پاره ئې نور څه نه دی راوړی او هره ورځ د مهاجرینو
ترمینځ دغه عقیده قوی کیږی چه د روسانو
او د هغوی د غلامانو مظالمو ته غاړه کیږدی او له
دی ظاهری اسلام او مسلمان دوله څیرونه چه د پاک
خدای په دغو بندګانو باندی هره ورځ هورراز رنځونه
وهی او خاندی ، تیرشی او وتښتی .
په هری هفتی او میاشتی کښی په پخوانیو تخریبونو او
ظلمونو یو بل ظلم او تخریب زیاتیږی او په مهاجرینو
باندی د ژوندانه مشقتونه او تنګسی لا پسی ډیریږی
او هره ورځ نوی رشوت مینځ ته راځی او په پخوانیو -
قانونی شوو رشوتونو باندی علاوه کیږی او د هری
هغی بمباری سره چه روسان ئې د افغانستان په یوه کلی
باندی کوی د څنو احزابو د موټرونو په تعداد باندی زیاتی
راځی . د مشرانو او غټانو فسادونه او ظلمونه په ورو
باندی هم تاثیر کوی او مهاجرین هم ورځ په ورځ له
دی بابته د شاګردی مرحلی ترشا کوی ، څینی ئې د استادی

دا راز خلکو او گروپونه ددی لپاره چه د الحاد او کمونیزم د پاره سبنه خدمت وکړي باید پری نږدي چه اصیل اسلامی جریانونه مینځ ته راشي او که رو بیکا رهم شي دغه په خلاف باید پروپاګند۔ وکړي اتهام پری وتړي ترڅو دخلکو نظرا وعقیده له هغوی نه واوړي او خلک پری مشکوک کړي .
دشک او تردید مینځ ته راوستل او ذهنونه مغشوشول د ملحدینو، کمونستانو او کافرانو د تکتیکونو یوه مهمه وسیله ده چه ددغو خلکو په لاس کښی ده او له هرشي نه هرشي جوړولی شي۔ دغه خلک له یوه مطلق ملحد او دهری نه یو لیډر جوړولی شي او یو مطلق مسلمان په مجاهدینو باندی نوڅلی او توتی توتی کولی شي . دغه خلکو دخپلو مرامونو د پرمختګ بیولو دپاره یوانځی بی او دسه لمونځونو او دمشرانو مدح ، تملق او ثناخوانی ته ځانونه وقف کړي دی او همدغه دستور ورکړ شوی‌دی چه امیران چه هرڅه کوی دوی به ئی مدح او صفتونه

کوی او ورته وائی چه منه دی وکړه صاحبه . حتی امیرانو ته جعلی خربونه هم جوړوی او امیران وربا ندی خوشحالوی ، هغوی د دلـدل په اسونو سوروی او په افغانستان کښی ئی گرځوی . یوازی د امیرانو دزړونه ساتل او په لاس راوړل ، جان او قربان ویـل ددوی وظیفه ده او باید هیڅکله د امیر په کارونو باندی انتقاد ونه کړی او هرڅوک چه امیران د اسلام په مند ، دجهاد په منرو، دخلکو په دښمنی او دروسانو په دوام سهوی حرکتونه هم وکړی دوی باید ورته منه ووائی همدا علت دی چه په اکثرو احزابو کښی دوی منه منـه موقعیتونه نیولی دی او دومره ئی میوگی تینگ شوی دی چه دیر منه منه مهاجرین نشی کولی دوی لـه احزابو نه وباسی یائی موقف ورخراب کړي . کښې تر هغه وخته چه مهاجرین او مجاهدین په احزابو ځانونه ددغه نیرنگی دامونو او کمونستی چالونو نه خلاص نکړی دجهاد د پرمخ تگ دپاره څه نشی

کوی او تل به ددغو روسی غلاماتو په فیدوتوکښی گیروی تکه چه دی .

ددغو دلایلو په بنا چه په څو مثالونوئی دلته اکتفا وشوه او ډیر تلکر ئی د یر مشکلات منځ ته راولی ددغو عواملو له جملی نه دی چه یه قاطعه توګه حکم کوی ترڅو دغه محزبین او دغسی محافظه کاره روحیٔ سره چه ددغو محزبینو سوغات دی برخورد وشی دغه راز سازش گر او فاسد عناصرله منځه ولاړشی او قاطعانه مبارزه ورسره وشی ، داسی یو سیاست اتخاذشی چه دا راز مشکلات حل کاندی ، اسلامی جهاد پرمخ بوزی او افغانستان نجات ومومی ، دهرڅا سره اسلامی تصفیه حسنات وکتاب وشی ترڅوچه وپوهیږو دغه یو ویشت کروړه یا دوه زره او سل تکه روپی چه دپاکستان دتلویزن داعلان په اثر پروسږکال مهاجرینو ته توزیع شوی دی چا اوچا واخیستلی .

د اسلامی انتقام حزب دخدای پاک په توکل او

اتکاء خدای ج داوامرو دتطبیق اوپرمخ تگ دپاره په قشو لاسونو مگر دوطن دنجات دپاره په قاطعه اوراسخه عقیده اود روسانو په خلاف دلوی - دواکمنو استبداری مبارزی په مقصد مینځ ته راغلی اوپه کار - بانندی ئی شروع وکړه اوهرڅه له خدایه غواړی. داحزب دټول مملکت دټولو خلکو شکایات او- عرایض چه په اسلامی شریعت، اسلامی- دلایلو او اسلامی منطق برابروی منی ترڅو هغه مظالم اوجنایات چه ملحدینو، خلقیانو، پرچمیانو مسلمان پوله خلکو اوخاینو په هیواد کښی د ننه یا په پینبور کښی یا په لنورو ځایونو کښی کړیږی ددی حزب د پیروانو له خوا پرسی شی او حق حقدار ته ورسیږی.

# دحزب مختصره تاریخچه

د ۱۳۵۷ کال داسد په میاشت کښې دتره‌کی دمینځ ته راتللو نه وروسته د اسلامی خاموا و - محدودوا هدافو دتعقیب او پرمخ بیولو دیوه سنگر په حیث اسلامی انتقام مینځ ته راغی او په هغه وخت کښې دغه ارکان حزب نه وو او نه په حزبی منکوره بناء شوی وو .

په هغه وخت کښې دی ارکان غوښتل چه دخلقیانو او پرچمیانو په واقعی تعداد باندی پوه شی او دهغو په مقابل کښې دهیواد په بیلو بیلو سیمو کښې وارړه قدرتونه ایجاد او تنظیم کړی ، دخلقیانو او پرچمیانو ترمینځ فاصله اولریوالی ایجاد کړی ترڅو هغوی پوره بل په سرووهی اوددی ترڅنگ دافغانستان مامورین وپاروی چه دوایرو ته دتگ نه ځان وژغوری

او په دغه موده کښې که څوم بل سالم اسلامي جریان مینځ ته راتلی دا ارګان به هم له هغه سره یو ځای کیږي او لوي قوت به مینځ ته راولي . دي - تشکیل یا تولنې تر یوې اندازې وکړې شو چه پورتنی هدفونه پرمخ بوزي مګر خپل د یر پیروان ئې هم دلاسه ورکړه او شهیدان شول ترڅو چه د ۱۳۵۹ کال د اسد په میاشتې کښې وروسته تر هغه چه د مهاجرینو او جهاد زړه دردونکې وضع ئې په پیښور کښې مطالعه کړه او پیښې وپرهیده چه د یر تحزب لاسونه د جهاد د سقوط د پاره لګیا دي او غواړي چه د مجاهدینو قدرت وباشي دي ارګان تصمیم ونیوه چه د حزب تشکل ونیسي او خپل مرکز د افغانستان نه پیښور ته منتقل کړي .

د دي حزب مرکزي شورا یو سل او پنځوس تنه غړي لري چه د متقي ، غښتلو دیني علماوو ، تعلیم یافته طبقې ، پوهو صاحب منصبانو ، معلمانو ، داکترانو ، انجنیرانو ، قومي مشرانو او د لوړ هنتون محصلینو نه جوړ

ده . چرن بعضی هغوی پخپله نه غواړی چه نومونه ئی افشاء شی او هغه کارونه چه اوس ئی دری په سفارتونو او په کابل دننه په شعباتو ، قشلو ، قطعاتو او نورو ځایونو کښی سرته رسوی رسوانشی مونږ ددوی د نومونو د سپودلو نه ډډه کوو .

ددی حزب د مرکزی کمیټی یا شوری غړی د افغانستان په ټولو طبقو ، قشرونو ، منطقو او اقوامو پوری تړلی او مربوط دی او له دی حیثه دغه حزب د ټول افغانستان د خلکو معرف او ممثل دی او ددی د پاره چه دغه توازن وساتل شی کله کله دیوه سمت نه د حزب جذب توقف کوی او په بل سمت باندی فشار اچول کیږی ترڅو پیدی توګه د حزب بیلانس او توازن وساتل شی .

ددی حزب ټول قدرت د شوری یا مرکزی کمیټی له غړو سره دی چه د حزب د قدرت لوی مرکز او د تصمیم او پالیسی ستره منبع شمیرله کیږی چه د دغو یو سلو او پنځوسو تنو له جملی نه اتیا تنه ئی

دافغانستان په بیلو بیلو سیمو ، دځینو اخوا بریه په جبهو کښې اوځه هم په ایران ، هندوستان اونورو هیوادونو کښې اوسی او تقریباً پنځوس تنه ئې په پیښور او پاکستان کښې دی ځکه نو دغه حزب په یوه سنګر یا دوو سنګرونو ولاړ ندی او نه د خوتنو په مرګ سره سقوط کوی په واقعیت کښې داحزب [illegible]انستان دخلکو او په پاکستان کښې د مهاجرو او مجاهدو مسلمانانو مشترک حزب ، دارتباط وسیله او د مشترکې مبارزې سنګردی .

داحزب دافغانستان دخلکو د مطلقې رهبرۍ اورادې لاندې دې او په اصلی معنیٰ د هیواد خلک داحزب رهبری کوی ځکه نو یو وړ د نشې کولی خپل ایال او شخصی ارزوګانی پېی حزب کښې پرمخ بوزی یا هم د ننه په حزب کښې فرعونی او فرمان روائی وکړی .

سره ددی چه ټول مقررات ، اصول ، اجراآت او قوانین په دی حزب کښې پهٔ کامله او مطلقه توګه اسلامی دی بیا هم ددی د پارهٔ چه داحزب دخپلو

اجرأتو په پرمخ بيولوکښې د قرانی ایاتو او مستندو احادیثو په مطابق حرکت وکړی ددی حزب قانونی مسائل ، اصول ، پالیسی ، اوخط مشی د ریسرچ تحقیق او تتبع دکمیټی د تصویب نه وروسته تراجرا لاندی نیول کیږی چه دغه کمیټه د یوولسو فوق العاده ، متبحرو او پیاوړو اسلامی علماوو نه متشکله ده اولوړ د یر علما هم

د ریسرچ ، تتبع او تحقیق کمیټه د اسلامی لحاظه دحزب دکنترول یواځنی با صلاحیته مرجع ده او ددې کمیټی تصامیم عالی شوری یا مرکزی کمیټه هم له میځه نشی وړلی او نه په هغوکښې تغیر راوستلی شی اولدی سببه دغه حزب دافغانستان یواځنی اسلامی حزب گڼل کیږی .

د اسلامی انتقام حزب خپل ټول اسلامی مواد او مقررات ددغی کمیټی له لاری اخلی اودغه کمیټه د قرآن پاك او نبوی احادیثو نه دقوانینو په استخراج باندی بوخته کمیټه ده .

خلاصه دا چه د اسلامی اوامرو او احکامو د تطبیق او پرمخ بیولو له لحاظه د اسلامی انقلاب حزب په مطلقه توګه د دغه کمیټی تر کنترول ، اراده او اداری لاندی دی او د دغی کمیټی غړی تل د اسلام او اسلامی قوانینو په مورد کښی خپل مطالعات او څیړنی پرمخ بیائی.

د دی حزب غړی په حزب کښی خپلی چوکی په موقتی توګه ساتی او هرکله چه له ځانه په حزب کښی بل اهل، متقی صالح او ښه سړی وويني ولو که د وی سابقه داران او هغوی نوی هم وي دوی به خپلی چوکی هغوی ته پریږدی ځکه چه د دی حزب اصول او مقررات لکه نورو غوندو سیاسی ندی بلکه د حزب اصول په کلي توګه اسلامی دی او په اسلام کښی هغه څوک مخکښی او وړاندی وی چه د تقوی ، عدل او پوهی خاوند وی نه سابقه داران .

دا حزب اوس یو موقتی رئیس لری چه د شوری د غړو اکثریت په هر وخت کښی کولی شی چه هغه لری کړی د اصلی رئیس د ټاکلو دپاره به مرکزی شوری غونډه

درجي ته ورسیدل او ځيني نور د استادي امتحانونه ورکوي او همدغه وجه ده چه جـــــــــهاد مخ په سقوط روان دی . ددغه اسلامي جهاد ماشین اسلامي پاتی دی مگر دهغی ورپا پرزی روسی کیږی او تغیر مومی .

دغه وضعه ، دغه روش ، تګ او اجراأت هغه فضا او هوا ته ورته ده چه د ظاهرخان د سلطنت په ورستیو کلونو کښې ئې د هیواد په اجراأتو باندی اثر غورزولی و او نتیجه ئې په هیواد باندی دکمونیزم تسلط شو . په هغه وخت کښې به هم دښو خلکو ښو اعمالو ، صادقانه خدمتونو او صحیحو اجراأتو مخه نیوله کیده ، اما ظالمانو ، خائنانو ناااهلانو ، مفسدینو او رذیلانو ته به د پرمخ تګ چانس ورکول کیده چه نتیجه ئې همدا کمونیزم شو او وروسته معلومه شوه چه دا دکمونیزم هوا او فضاوه چه د- کمونیزم تر راتلو دمخه ئې د افغانستان ملکی او نظامی اجراأت ترنفوذ لاندی راوستلی و او دهرشی محـور ئې دکمونیزم په گټه څرخولو .

کوی زود هغه صلاحیتونه به هم د شورئ له خوا
په کل کیږی او کله چه دغه رئیس له خپل صلاحیت
نه تخلف وکړی یاداسی اجراآت وکاندی چه داسلامی
مقرراتو او اصولو نه مغایروی شورئ به ئی فوراً لری کړی
او په ځای به ئی بل رئیس ټاکی .

داحزب د اساسی کار د پیل کولو نه مخکښی د نورو-
احزابو دیوه تعدا د مخبرانو او جاسوسانو د هجوم سره
مخامخ شوا و هغوی غوښتل چه پدی حزب کښی ننوځی
اوخپل مرامونه پرمخ بوزی ، اما ددی حزب هغه غړی
چه په نورو احزابو کښی ننوتلی دی دخپلو راپورونو
له لیاری ئی دغه خلک حزب ته معرفی کړه اوبیرته
وو یستل شول هغه چه وروسته تردی راغی هغوی به
هم په ډیر تحقیر اوتو هین سره بیرته ویستل کیږی
ځکه نو ددی حزب اولی هغتی دلورو احزابو دمخبرانو
اوجاسوسانو سره په مصروفیت تیری شوی اوځو مره
چه پدغه رشته او مسلک کښی هغوی درلود دل دی
حزب ته ئی راولیږل اوراسیږی ئی . ددغو حزبونو هغه

دگمرک مامورین چه په بازارو کښې گرځي او تاپې ور سره دي هره ورځ پرې حزب باندې تورونه تګوي ، چون مونږ دوی پېژنو چه دوی د روس او امریکې د مارکیټونو نه د همدې مقصدونو د پاره خریداری شوی دی چه د اسلامي اصیلو او واقعی جریانونو مخه ونیسي او په اسلام متظاهرینو سته د پرمختګ لاره خلاصه کړي ، همدغسې چه دوی پخپله مونږ ته قیمت نلري ، او پردې ئې ګټو ددوی تاپې هم مونږ ته څه ارزښت نلري او پدې هم خبریو چه سوچه شودي خریدار او مارکیټ نلري څکه پاکي او حلالي پیسې لګښته .

نو مونږ هغه عریضې چه د حزب د مرکز دانتقال په باره کښې د پاکستاني مقاماتو د فترونو ته دخبرتیا د پاره ورکړې شوی وی له دغو دوایرو نه ورکې شولې او دهغوی دورک کولو د پاره بعضی خلکو دیری پیسې ولګولې همدا وجه وه چه مونږ دد غسې رسمیاتو د طې کولو د پاره تقریباً یوه میاشت په تګ او راتګ تیره کړه چه دغسې تکلیفونه لوړو پارتیو ونه لیدل او کوم مقام هم

له دوی سره بد سلوک او بده وضع ونکړه .

داد دفتراو دیوان مشکلات ، داد عرائضو وړکیدل داد تاپو تګول اوداد مخربینو هجوم اوځنې نورو عواملو مونږ ته ثابته کړه او وئی پوهولچه واقعاً مونږ پوځه پو اوځه کولی شی اوداسلام د دښمنانو نه انتقام اخیستلی شوځکه چه ددی حزب دراتللو سره دوی ته خپل ځا یتونه او خیانتونه پو پو په مخ ورڅرګندیدل اوددی حزب نه ئی ویره لرله ځکه ددی حزب د تشکل مخه ئی نیوله .

په رښتیا هغه کسان چه خپل اعمال پخپلو هندارو کښی وینی باید د هرمومن او مسلمان اوهرفردی قدرت نه په ویره او خطرکښی وی . داسلامی انتقام د حزب تنظیمی قدرت خولا پریږده چه په رښتیا د - خونخوارو ، ملحدینو ، کافرانو ، جلادانو ، ظالمانو قطاع لطریقانو ، غلو اودکمونیزم دایجنتانو وینو ته ډیره تږی دی .

په اسلامی مسیر باندی جهاد برا برول ، د

واقعی اسلام احیا ، دیره اسلامی محیط ، ماحول او فضا مینځ ته راوړل ، د اسلامی اخلاقو تربیې او ادابو ایجاد ، د کمونیزم د تسلط نه د افغانستان او د افغانستان د خلکو نجات او په نتیجه کښې د افغانستان خلکو ته د افغانستان د حکومت د قدرت سپارل د دې حزب اصلی مرام دی او بله ارزو نلری او همغسې چه د زمانې ګذشت د هرڅا او هرڅه د پیژندنې په باره کښې یو سلسله حقایق څرګند کړل نږدې - راتلونکې جریانو نه به هم د هرچا څیرې برسیره کړی او د ټولو اعمال به په ښه ډیر بانډې ښکاره کړی او د دې حزب واقعیت او ماهیت به هم ښه روښانه کړی .

د روژې په مبارکه میاشت کښې د دغه حزب غړو د یک او عظیم الشان قرآن د ختم نه وروسته چه د افطار وخت هم را نږدې و خپل لاسونه د هغه لوی خدای دربار ته چه همیشه د حق او عدالت طرفدار دی پورته کړل او د هغه په پاک دربار کښې ئې د دغه دعا نه

وروسته روژه ماته کړه او په کارئ پیل وکړ:

خدایه ! ته په خپل ازلی او ابدی علم د یرښه پوهیږې چه دا حزب څه مقصد لري، څه د پاره مینځ ته راغلی، څه غواړي او څه کوی، په رښتیا که دا حزب ستا د پاک ذات د اوامرو د تعمیل د پاره، ستا د رضا د لاس ته راوستلو د پاره، د افغانستان او اود هغه د ضربو او قمچینو لاندی ولس د نجات او آزادی د پاره چه د ملحدو روسانو او مسلمان دوله خلکو د قدرتونو لاندی ورځ په ورځ میده کیږی د هغوی او د هغوی د اولاد دولو فریادونه او زړاګانی پوازی ته اوری او غیر ستا د پاک ذات نه بل امید او د حمائی ځای نلري، د خدمت ارزو لري او ستا د بندګانو حمایه او ملاتړ کوی او واقعاً د شرق او غرب د نفوذ نه پرسوحچه پاک او سپیڅلی جامعه د ایجاد د پاره د خدمت مصدر ګرځی او په نتیجه کښی د افغانستان د خلکو د پاره پرته د هر راز سیاسی، اجتماعی او اقتصادی تبعیض او تعصب نه کار کوی نو پدی

صورت کښې ای پاکه خدایه ته ددې حزب حامي او مرددگار اوسه ، ته دې حزب ته قوت او قدرت وبښه ته ئې په پښو ودروه او ته دهغه دروازه دټولو ملحدينو ، مخربينو ، جاسوسانو ، ظالمانو ، خائينانو متظاهرو مسلمانانو ، متقلبينو او ددين او دافغا- نستان دخلکو ددښمنانو پرمخ وتړه .

پاکه خدایه ! که دغسې نه وي او دا حزب هم پرته له خيانت ، تقلب ، مردم آزارۍ ، ظلم ، چوراوچپاول خلک وژلو . په خارجي بانکونو کښې د پيسو جمع کولو ، د ملحدينو او روسانو سره ملا تړيا وطن خرڅولو ، دخلکو د درپدره کولو ، دجهاد سقوط او په افغانستان باندې د روسانو دقدرت د دوامداره کولو نه پرته کوم بل مقصد او مرام نلري او له دې رهګذره ددې حزب له تاسيس سره دافغانستان دستم ځپلو خلکو په اوږو باندې نورهم د ظلم او بيعدالتۍ بيټي زياتيږي او په افغانستان کښې ستا بندګان لاهم نا ارامه او ذليله کيږي ما شومان ئې يتيمان

بنځې ئې بې میړونو او میندې ئې بې زامنو کیږی او د اسلام تر شعار او نامه لاندې د احزب هم په هر راز فجایعو ځیا نتونو ، او د اسلام په تګولو بوخت کیږی پدې صورت کښې ته د دې حزب اساس او تهداب له همدا اوس نه وران کړه ، په پښتونې مه دروه او ژر ئې له مینځه یوسه تر څو د اسلام د نامه لاندې دغه مقدس او آسمانی دین چه له دیارلس سوه کلونه را پدېخواه ئې د تخریب د پاره کار کیږی لدی نه زیات تخریب نشی .



# مرام

ددی حزب مرام په مفصله توگه د (جهاد ودستهای پښت پرده) دکتاب په شپږم فصل کښې د اسلامستان یادیږی اسلامی جامعی د اساساتو د طرحی لاندی نشر شوی دی چه ددی حزب د مرام په حیث اهمیت او ارزښت دری مگر د اچه د حزب شوری په هغه کښې زیاتوالی راولی بیا هم په مختصره توگه د حزب د مرام عمدهٔ ټکی سپه لاندی ډول سره تشریح کیږی :

د اسلامی جهاد پرمختگ ، د اسلامی ټولنی حمایه او د روسانو ، خلقیانو ، پرچمیانو په مقابل کښې یوه دوامداره اوخستگی ناپذیره مبارزه ددی حزب دوستان له دښمنانو نه بیلوی او د دواړو ترمینځ یوخط فاصل ? کاږی . د اجهاد دی چه حکم کوی دچا سره څه باید وکړو او دچا د څه رازاعمالو نه څنگه او په څه توگه انتقام واخلو .

۱- نن په افغانستان کښې تقریباً سل زره روسی عسکر پراته دی چه بیا هم نشی کولی په دغه هیواد او خلکو باندی خپل تسلط ټینګ کړی او حالات تر کنترول لاندی راولی . ددی دپاره چه روسان وکولی شی په افغانستان او خلکو باندی ئی مسلط او کامیابه شی دوه لاری په لاس لری یو دا چه خپل فوځ او لښکر ډیر کړی او کم تر کمه هغه څلورو یا پنځوسوو زرو تنو ته ورسوی چه البته دوی دومره عسکرو مالی او پولی مصارف لکه روسیې غوندی په ډیرو مشکلاتو اخته هیواد ته دا اجازه نه ورکوی چه دغه پیسی خرڅ کړی . دویمه لاره داده چه افغانستان ورځ په ورځ د خلکو او افرادو نه خالی شی او خلک ئی بهر ته مهاجرت وکړی په هره اندازه چه په پاکستان کښې د مهاجرینو تعداد ډیریږی په هغه تناسب او پیمانه دغه رضع د روسانو په ګټه ده او علاوتاً د پاکستان هیواد هم د لوړو ډیرو ستونزو سره

ځانګړې کیږي او د ځوانو مهاجرینو په پریشانۍ باندې نور هم زیادت راځي او د نړۍ هیوادونه نشي کولی چه د دغه تعداد مهاجرینو سره مرسته وکړي که د افغانستان خلک ټول پاکستان ته راشي دا به د روسانو لویه ارزو وي ځکه چه هم به افغانستان تخلیه شي او هم به د پاکستان هیواد او حکومت له ډیرو مشکلاتو سره مخامخ شي او راز راز ناارامۍ به پکښې پیداشي .

هغه احزاب او هغه کسان چه په یوه یا بل شکل په مستقیمه یا غیر مستقیمه توګه د افغانانو په کوچ ورکولو او مهاجرکولو کښې کوښښ کوي هغوی هم په حقیقت کښې د روسانو دپاره یو ډیر سبه خدمت سرته رسوي او هم جهاد د خطرونو سره مخامخ کوي ځکه چه په دغه صورت کښې هم وطن خالي کیږي او هم به څوک نه وي چه مجاهدینو ته ډوډۍ ورکړي او نه مهاجرین پټ پاتې کیدلی شي ځکه نو د اسلامي انتقام حزب قطعاً نه غواړي او ارزو نلري چه لنور

په هغو شرایطو کښې چه هرچا د خلکو چغې ویستلې ، خلکو ته ئې زجر ورکولو ، د نفرت په ایجاد او تولیدولو ، د نارضایتو ، مظالمو ، وحشتونو ، بیدا د گریوا و د جامعې او خلکو د تباهۍ کوشش ئې کاوه او ډیره برخه ئې پکښې اخیستله هغه ښه حمایه کیده ، ښه پرمختگ ئې کاوه ، مکافات ئې لیدل او مصئون ژوند ئې تیراوه او چا چه د غشي نه کول له یوه ونا وت نه به بل ته شرل کیده او د هر راز د سیسو او رنگا رنگه ټوطئو سره به مخامخ وو .

امیر عبدالرحمن او نادر خان د خپل اقتدار په وخت کښې وطن پرسته او مردم دوسته مسلمانان د ظلم او تعدی سرسخته دښمنان ، پره او غښتلی خلک د دې د پاره چه د دوی د شومو او غیر انسانی اعمالو او اجرااتو مخه ونه نیسي د وطن او ملت سره په خیانت متهم او محکومول او د مینځه ئې وړل .

داؤد هم د خپل صدارت او جمهوریت په دوره کښې همدغه سیاست او پالیسی پرمخ بیوه ، وطن پرسته او منور مسلمانان به ئې د کابل په ښار کښې نه لیدل مگر

افغانان مهاجر شي یا داسې پلا نونه ، تدابیراو تجاویز و نیسي چه نتیجه ئې دافغاني پناه گزینو زیادت په پاکستان کښې وی او پدې طریقه افغانستان تخلیه شي او د روسانو رضائیت حاصل شي او مهاجرین بیا په پاکستان کښې دخیمو په غم کښې شي ، ورځې تیرې کړي او جهادئې هیرشي .

هرڅوک چه د حزب د دغه نظر او سیاست سره مخالف وی په واقعیت کښې د روس منافع پرمخ بیائی که دوی شعوري او قصدي داکارنه کوي په غیر قصدي اوغیرشعوري توگه دغه مقصد ترسره کوي چه په افغانستان کښې نفوس کمیږي هغومره د روسانو کنترول اضافه کیږي .

۲ - په حکومتي او اداري لحاظ نن د افغانستان هیواد په یوه خلا کښې واقع دی ، اسلامي حکومت نشته ترڅو د خلکو مشکلات حل کاندي ، د هغوعرا یضونو ته ورسیږي او د مظلومو، تعدي گالو او ظالمانو په مقابل کښې اقدامات وکړي .

د ملحدینو حکومت علاوه لدی چه په ټوله معنیٰ ضعیفه دی په اکثرو ځایونوکښی موجودیت هم نلری او په کوم ځای کښی لکه دکابل مبار یا څو نورو ښارونو کښی چه لری او ډیر وجود لری هلته خلک ورته مراجعه نکوی او نه ئی اطاعت او پیروی کوی ځکه نو په دغه خلاء دغو شرایطو او اوضاعو کښی مستضعفین ، بیچاره گان او مظلومین په ډیر تکلیف کښی دی دوړځی د ملحدینو او روسانو د چپاونو او بمباریو سره مخامخ دی او په شپه کښی د ځینو مسلمان ډوله قوماندانانو له خوا د دوی چغی پورته دی چه د دوی آه و فریاد غیر له پاک پروردگار نه بل څوک نه اوری ، د افغانستان مسلمانان په هیواد کښی د ننه د روسانو د لاسه او کله چه مهاجرکیږی د هغو خاقیانو او پرچمیانو د لاسه چه ورځ په ورځ ئی تعداد په ځینو حزبونو کښی ډیریږی په چغو راغلی دی او له دوارو خوا او پدوی باندی وار په وار دښمنات مسلط کیږی .

دغه مسلمان ډوله قوماندانان چه ځینی ئی ډیر

مشکوک کسان دی او دپیسو په مقابل کښی مقرریږی
یوازې ددغه جهاد دخط السیر دتغیر مسئول دی. دوی
دزکوٰة اوعشر دا خیستلو دپاره چه هیڅ شرعي دلیل
نی هم دا خیستلو دپاره نلری دافغانستان خلک دومره
تر زجراو شکنجو لاندی نیولی دی چه ځنی خلک دوهلو
په اثر دلرګیو لاندی مری . دا ده هغه اسلامی
طریقه چه زکوٰة پری اخیستل کیږی او درا تلونکی
حکومت تمثیل کوی ، د نفرت او انزجار پیداکول علاوه
لدی چه د پاک خدای دقهر او غضب سبب ګرزی او
له اسلام او اسلامیت نه لری دی ، دکمونستانو
اوملحدینو دپلانونو او حرکتونو ځنه دی چه لتوسعه
نی یوازی د روسانو هیله ده او ددوی په ګټه دی
مګر متاسفانه چه دجهاد په ساحه کښی روان دی
او هیڅوک ورته متوجه نه دی .
ددغسی قوماندانانو دقوماندی لاندی او پیغو
شرایطو کښی یو ظالم ترلور دخپل مظلوم ترلور-
وژلو ته سبه وخت لری ، په همدغه وخت کښی دی چه

دغه ناتوانه سړي چه پخپل ټول حیات کښي غیر لــه یوی سبا یسته بنځي نه بل څه ا وڅوک نلري ، پخپله وژل کیږي او بنځه ئي جبراً دشهوت پرستو دیوانو دشهرت رانئ موجب گرزي او کله چه دغه بنځه شکایت کوی ددغو تبهکارانو د ماشیندا رو دګولیو په اثـر سوري سوري کیږي ځکه چه خپل عفت نه ئي دفاع کوله لکه چه په خوګیا ینوکښي داسي وشول پـه همدغه وخت کښي مسلمان ځما تش په نامه مجاهدین په هلکانو تجاوزکوي او کله چه دا هلکان دحزبونو دفــترونو ته دشکایت دپاره ورځي بیا ئي هم څوک عرض نه اوري .

ددغه اداری خلا په وخت کښي چه دارنده له خپل ثروت نه او نادارد پریشانئ له لاسه په تنګ راغلي او هر ظالم چه هرڅه وغواړي هغسي کولی شي .

په غسي شرایطو اومایوس کوونکي ، غم لړلي حزن اورا و تاسف بښونکی محیط کښي د مظلومانو اومستضعفو حمایه اوملا ترکول ، د ظالمانو مخنیوی

او د افغانستان خلکو ته د اطمینان ، اسایش ، ارامش او د تسکین د روحي ښېګڼې له هغو شدید و ضرورياتو څخه وچه د احزب ټې مینځ ته راوستې ترڅو د مظلومانو سره او سبکې نوی کړي او قاتلان په خنجر وو هی او دغو شرایطو کښي زمونږ په فکر دغه عمل د هغو بهترينو عباداتو څخه دی چه که په صادقانه توګه سرته ورسیږې ممکن دلوی خدای د رضائیت او خوښۍ موجب شي او علاوتاً له ملحدینو ، ظالمانو ، مفسدینو ، جابرانو چپاولګرانو نه دغه راز اسلامي انتقام اخیستل مونږ ته د لورو حزبونو سره د مرستې او کمک معنی هم لري.

فَمَنِ اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ ۵ .

د انتقام اخیستل او د بدیو سزا ورکول د اجتماعي نظام د بقاد پاره یولوی اصل دی او قصاص چه شرعي حکم دی ید غه اصل متکي دی او که چیری دغه اصل نه عملي کیږي ، ظلم او تعدی جواز ولري امن و امان مختل کیږي او له فساد نه مخنیوی نشي کیدلی ځکه نو

هغه کسان چه وائی په اسلام کښی انتقام نشته او ددی حزب په نوم باندی حملی کوی ددی آیت دمتن ماهیت اوروح منکرین دی.

دیتیم داو ښکو پاکول ، د مظلوم لاس نیوی دهیڅ راز شرایطو او حالاتو لاندی ظلم ته غاړه نه ایښودل د ملحد او قاتل وژل ، د سارق تړل ، واقعی اسلامی لیاری ته دجهاد لارښوونه او دمهاجرینو مشکلات دری کول نهمونږ د کار اساس وتهداب دی او ددغی فلسفی او اساس په بنا مونږ انشاالله د هر چاخدمت ته رسیږو او دټولو سره حساب اوتصفیه کوو او علاوه پردی دغاصبانو ، ظالمانو ، داړه مارانو او قاتلانو په مقابل کښی دا حزب دنادارو مهاجرینو او مظلومو وطن والو دوکیل دعوی حیثیت هم دری څکه نوټول مسلمانان دشرعی او قانونی اسنادو په وړاندی کولو سره کولی شی خپل مظلومیت او دمقابل لوری ظلم دلته ثابت کوی او بیا له حزب نه وغواړی چه له دښمن نه ئی انتقام - واخیستل شی او هغه کسان چه جهاد منحرف کوی هغوی

نه‌به هم بېدی تر‌ګه انتقام اخیستل کیږی ترڅو‌چه د جهاد د سقوط مخنیوی وشی .

بېدی څه د پاسه دوو کلونو کښی چه جهاد جریان لری دجبری زنا ډیری واقعی مینځ ته راغلی دی ، ډیر بیشماره لوی او واړه ماشومان د خپلو پلرونو په ګناه د مجاهدینو له خوا په اورکښی وسوځول شول یا ووژل شول ، ډیر کورونه چور او تاراج شوه ، ډیر سپنه مسلمانان بی موجبه یا په شخصی غرضونو یا د حزبی قاتلینو او د روسانو د نمایندګانو له خوا په فجیعانه توګه ټوټی ټوټی شول ، ډیر خلقیان او پرچمیان چه د ملت قاتلین دکورونو لوټ کوونکی او د انجونو او ښځو د بی عفتیو مسئولین دی د قوماندانانو له لیاری حزبونو ته ننوتل او س هم په دغه حزبونو کښی مسلمانان خوروی .

دا بېتول فجایع ، ظلمونه ، قتلونه ، زناوی ، داړی غلاوی ، بیعزتی ، بی عفتی چه د بی تنظیمی او بی پلانی په اثر او د قوماندانانو د قصدی یا سهوی روشونو په موجب مینځ ته راغلل او راځی او ددوی له لاسه

اوس جهاد دغلو او داړو ځای نیولی او د روسانو ته اسناد په لاس ورکوی چه اسلام او مسلمانانو ته توکی ټول امیران هم سنه پری خبردی او پدی سنه پوهیږی چه ددوی اکثر قوماندنان د ظاهرشاه او دداود د قوماندانانو نه دیر رهزن، غله، نامسلمانه، بی عاطفی رشوت خواره او دغلو ملګری دی او په قصدی یا سهوی توګه ددوی روش او اعمال د روسانو په ګټه تمامیږی.
ولی کوم امیر ددغه کار مخه نه نیسی، ولی یو امیر مجرم، قاتل، زناکار او داړه مارته څه نه وائی، ولی یو امیر هم ددغو فجایعو د تکرار مخه نه نیسی، ولی هیڅ امیر په دغو فجایعو ونه ژړل، ولی یو امیر تاسف ونکړ، ولی یوه امیر توبه ونه ویسته، ولی یوه امیر خلک راټول نکړل او ددغوی ته دغه نقص ته چه ساعت په ساعت دخدای غضب را پاروی او زیاتوی متوجه نکړه؟؟! اوس نو خلک دی قضاوت وکړی چه دخدای د قهر د راپارولو مسئول څوک دی، څوک جهاد منحرف کوی، څوک غله د قوماندانانو په حیث

تاکی ، چا جهاد په غلا اودارو بدل کړ څوک دی چه روسانو ته حربي په لاس کښې ورکوی چه اسلام وتیکوی ؟ .

که دغسې نه وی ولې د پنجشیر خلک پدې موفق - کیږی چه د روسانو حملې دفع کړې او هغوته شکست ورکړي . مګر کونړیان ، لغمانیان او ننګرهاریان چه د دری ولایتو خلک دی او د پنجشیر په تناسب ئې نفوس تقریباً دوه ملیونو ته رسیږی ونشوکولی چه روسانو ته شکست ورکړي داځکه چه دلته د بیر بیشماره ظلمونه او فجایع کیږی او د خدای قهر ورځ په ورځ زیاتیږی او داځکه چه دلته د روسانو د پټو تخریبیانو دیاره کار کیږی او د روس کشی په عوض مسلمان کشی شروع ده .

ولی نورستان هرڅه کولی شی اما کنړ هیڅ نه شی کولی داځکه چه د کنړ قدرت ، اداره او واکی ، لیډری او رهبری اوس هم یا د مشکوکو خلکو لاس کښې ده یاداچه دوی د مسلمانانو خلکوسره روان دی

خوګیاڼي هغه خلک وو چه په ننګرهار کښي ئې د اول
ځل د پاره د روس سره جګړه شروع کړه او دغه
افتخار ئې په نصیب شو مګر نن څوتنو په دغو مجاهدو
او مبارزو خوګیاڼو باندې دا سې حال راوست چه
د دښمن قصور ئې ورنه واخیست او خوګیاڼي ئې په
دې پوه کړه چه په ټول ننګرهار کښي همدا ته وی
چه د روس په مقابل کښي جنګیدلي دادې او س دې
حال در واخله .

د خوګیاڼو خلکو ته لازمه ده چه د خپلي منطقي
د بربادۍ او د ټولو خرابیو او قتلونو عاملین ، مسئولین
او فاعلین یو یو پیدا کړي او حساب ورسره وکړي .

دا سې خلک په دې جهاد کښي شته چه د خان او
بیګ سره ترونونه کوي چیني او بالا شونه ئې
قبلوي ، پخپلو موټروکښي ئې سپروي او د دغسي خلکو
نه امان غواړي مګر بیا د دغو خپلو کړو واوري د بل
په بام غورزوي حال دا چه همدغه خانان او بیګان
د دغسي خلکو او امیرانو په مرسته په سلګونو

مفسدین به ئې دوطن له لري ځایونو نه پیداکول ، بپه رذیل شناسی او دپست فطرتو اشخاصو په جذ بولو اود هرزه او خاینو خلکو په حمایه کښې د ابتکار، فکر اوارادې خاوند وو او همدغه وجه وه چه انجنیر حبیب الرحمن ، مولوی حبیب الرحمن ، غلام محمد نیازی، مولینا فیضانی ، داکټرمحمدعمر ،عبدالرسول سیاف محمد هاشم "میوندوال "محمدموسی"شفیق " او په سلګونو تنه نورغښتلی مسلمانان ئې په محبس کښې -واچول ترڅوچه وروسته څه ده پخپله اوڅه نور ددوی وروستیو وارثینو ووژل ، له مینځه یو وړل او ئې -زوروړل او په نتیجه کښې وروستو ملحدو رژیمونو دمنورو مسلمانانو اوپوهو خلکو ریبلو ته هڅه وکړه اود هغه په اثر نړولنه دومره له پوهو ، منورواومبارزو مسلمانانو نه تشه شوه چه نن موتروانان او دلسم صنف هلکان هم دافغانستان د وولس میلونو خلکو لیډرۍ دعوئ کوی اوځینی لاپړی تالغ هم ندی اود جهائ اسلام لیډری غواړی .

خلک ووژل .

۳- دیوه اسلامی محیط ، اسلامی فضا او اسلامی ماحول ایجادول او دداسی یوی جامعی او هیواد مینځ ته راوستل چه دا اجزاًتو تهذاب او بنیادئی اسلامی وی وروسته ددغه له جهاد کامیابی نه دحزب بل مهم مقصد شمیرل کیږی مونږ داسی ټولنه او محیط غواړو چه کارا او اجراأت ئی ټول اسلامی وی او اسلام دخلکو دعادی ژوند او ورځنی روش لویه برخه وی نه دا چه کوم آیت الله دهیواد په راس کښی و دروو او ووایو چه اسلامی نظام اوسیستم مویوائی دیوه تن مُلا ، اخوند یا ایت الله په مینځ ته راوستلو سره په هیواد کښی ترسره کړ ځکه چه تجربی ثابته کړه چه عادی ملا او اخوند ته دقدرت سپارل اسلام او جامعی سره لویه جفا ده مونږ غواړو داسی یوه جامعه مینځ ته راولو چه جهاد دروسانو او ددغه وحشی قام دمکررو وحشیانه مظالمو او تجاوزونو په مقابل کښی ټل ژوندی ثابت

او دوامداره وساتی او پرمخ ئې بوزی . داخپ ځان تل
د اسلام ددین ، هیواد ، اود خلکو پهره دارګڼی او
تردی وروسته به هیڅ کله دروسانو په مقابل
کښی غفلت وتکړی دفحشا او فساد سره به چه د
کمونیزم د استقرار او لین عامل دی د تل دپاره -
مبارزه کوی اود اسلامی عالی اخلاقو د احیاکولوکوښښ
به کوی . مونږ خپلی راتلونکی رابطی سیاسی وی یا -
اقتصادی ، علمی وی یا فرهنګی تردی وروسته
دروسانو سره په کلی توګه ختموو او حتی نه غواړو چه
له دغه خوانه مونږ ته شمال راشی او هغه کسان چه
بیا هم خاینانه ، ارتجاعی او محافظه کارانه وضع لری
او غواړی چه ددغسی بوه هیواد سره چه د افغانستان
د خلکو قاتلان دی ، د یر فامیاونه ئی له صحنه وړی دی
او پاتی فامیلونو کښی ئی د هریوه فامیل نه اقلاً یونفر ژلی
دی عادی روابط برقرار کړو مونږ دغسی سیاستونه
جداً ردوو . مونږ دروسانو په مقابل کښی پرته دانتقام
له خبرې نه هغه هم د تل دپاره نورڅه نلرو چه وړاندی

ئی کړو اود رو سانود ملګرو نه به هم د غه انتقام اخلو

۴ - داحزب نه غواړی چه د روسانو اود هغوی د طرفدارانو سره جهاد یوازی په افغانستان کښی د ننه محصور پاتی شی داجهاد باید د ټولو مسلمانو افغانانوله خوا په ټوله نړۍ کښی پیل شی ، روس وژل د ټولو افغانانو مسلک وګرزی . هغه مسلمان چه په افغانستان کښی زیږیدلی اولوی شوی دی که څنګ حیات کښی ئی یو اصلی روس یا اقلاً غیر اصلی روس یعنی خلقی او پرچمی نه وی وژلی د خپلو خلکو اود خپل هیواد په مقابل کښی به محکوم وی او نه شنائی چه په هغه باندی د واقعی مسلمان او افغان نوم کیښودلی شی .

۵ - وروسته د افغانستان د ازادۍ نه تر هغه وخته پوری چه د اسلامی انتقام حزب د آزادو انتخاباتو له لیاری چه په ټوله معنی به اسلامی او د اسلامی روحی سره برابره وی سیاسی قدرت لاس ته نه راولی - هیڅکله به د حکومت د لاس ته راوستلو کوښښ او اراده ونکړی او نه د هغه د پاره جهاد کوی . جهاد زمونږ ــــ

اسلامی وظیفه ده او د افغانستان د اینده سرنوشت ، دحکومت تا کل او دحکومت نوع او طرز معلومول هغه د افغانستان د خلکو کار دی او د افغانستان خلک د دغه قدرت مرجع او مظهر گڼو .

البته که اسلامی حکومت منځ ته نه راځی او یاد اسلامی اوامرو او احکامو په مقابل کښی غفلت او سهل انگاری کیږی ، دا حزب به د دغسی حکومت سره مبارزه کول خپل اسلامی مکلفیت او وجیبه گڼی او دا حق ځانته محفوظ ساتی .

۲ـ ددی حزب مؤقف د پښتونستان یا هغه د هل په باره کښی چه په کالونو کالونو ـ

وغزیول شوا ورد د غه

د هل د غزولو په نتیجه کښې قطبی خرسان په نخا راغلل او افغانستان ته ننوتل دا دی چه نور د غه حزب هیڅکله حاضر نه دی چه د غه راز اوازونه د افغانستان د خلکو د خولو نه واوری .

د دی حزب په نظر پښتون په واقعی معنیٰ موجود نه دی او ظاهری موجودیت په درد نه خوری

هغه کوم پښتون یا د پښتون لیډر وچه لدغو لسو لکو مهاجرو نه ئې د احوال پوښتنه وکړه ؟

ایا په پاکستان کښې همدغه پښتون د هرچا نه اول او زیات د مهاجرو په مخالفت ، په کنځلو ، ګوو او بدو ردو ویلو شروع ونکړه ، همدا پښتون هره ورځ د افغانستان خلک د تحقیر ، توهین او سپکاوی سره نه مخامخ کوی او د کورونو کرائی په دوی نه زیاتوی او د پردو پلانونه د دوی له خوا د مهاجرینو د تباهی دپاره پرمخ نه بیول کیږی ؟

د دغسی وضعی او روش سره هغه به کوم احمق افغان وی چه د دغه د هل وازنه بیاغوږ ونیسی

بیا هغه ډهل و تهنګوی او یا ئې داوریدلو تحمل ولري؟ ددغه ډهل یوازنی خدمت همدغه وو چه د خوب نومونو په آخر کښې ئې «آف» زیات کړ او دوی ئې د برژنف په ردیف کښې ودرول لکه بیزنجوف، غفاروف، اجملوف او داسې نور.

مونږ نور د «آف» خاندان ته ارزښت نه ورکوو او پښتون ددغه لیدرشپ لاندې په شپیتو یا اویا کلونو کښې دلته او هلته علاوه لدې چه کوم بل ابتکار ئې و نکړ او سبه نوم ئې و نه ګاټه پخوانې اسلامي او ملي غرورئې هم بایلود، مناعت او عزت النفس ئې ختم شو په حکومتونو کښې جاسوسۍ او اطلاع رسول، په تجارت کښې ټګرۍ ګرزول او نخود خرڅول، سربازی، شهامت او مردانګی کښې تربور وژل ددوی مسلک او کاروګرځید او پیرې په کار دی چه ددغه لیدر شپ لاندې د اویا یا اتیا کلونو رسیدلی مادی او معنوی تاوان جبران او تلافي شي او بیا پښتون د یوه ژوندي قوم په حیث تبارز وکړي

بنا" هرحزب چه ددغسی شعارونو یا ددغسی مرامونو دپاره کاراو فعالیت کوی فقط خپل وخت ضائع کوی او د افغانستان په مشکلاتو باندی نور مشکلات زیروی . دغه لیډرشپ د دغه قوم دپاره د زړو دښمنانو له خوا په همدی وجه انتخاب شوی وچه دغه قوم تباه او خراب کړی مګر لیډرشپ نور هم پرمختګ وکړ او دغه قوم ئی محوه کړ . دا مسئله ، دا موضوع او دا لیډرشپ نور نو خوارو نو خاورو لاندی شو او یوائی دخړزوی فیض نامی چه ددغه مفکوری لاندی د افغانانو په پیسو تربیه شوی و دداود په وخت کښی ئی په زرګونو پکتیاوال ، کابلیان ، لوګریان ، شمالی وال ، ننګرهاریان او لغمانیان ووژل چه خوشبختانه دخدران د قوم زړورو مسلمانانو دغه انتقام له دغه وطن فروش نه واخیست .

مقابلتاً دا حزب د پاکستان دخارجه چارو وزارت له ځینو محترمو زمامدارانو څخه هیله کوی چه بیا دی

دغه راز موضوعات په خپلو متينګونو کښې د افغاني مهاجرو سره نه مطرح کوي ځکه چې شرايط د دغسې خبرو اجازه هيڅ جانب ته نه ورکوي هر څوک او په هر څه پوهيدلي دي حاجت ريښخند او ښيخند ته نشته ، پښتون قوم او واقعيت ئې د تل د پاره او په تاريخي لحاظ د اسې استعمال او ختم شو چې نور نشي کولي په حال راشي او دغه د پرمټ نسخې که څو کاله مخکښې منځ ته راغلي وائي نور به هم مفيد ثابت شوي نو .

۸ - د احزب سره د دې چې په افغانستان باندې د غربيانو نفوذ هم لکه د شرقيانو غوندې په تينګه ردوي او نه غواړي چې افغانستان دې د لويو قدرتونو د نفوذ او سلطې لاندې راشي اما د نړۍ د هيوادونو سره زمونږه دوستي ، وروري د نيکو او حسنه - روابطو ايجاد او د سياسي ، اقتصادي ، فرهنګي او نورو ارتباطاتو تاسيس او برقراري د دغو هيوادونو د وضعي ، سلوک او موقف پورې مربوط دي

چه دوی د افغانستان د مسلمانانو په موجوده جهاد
کښې څه راز موقف غوره کوی . مونږ پوانځی
د اسلام په ظاهری نامه د چا سره وروری نه کوو
د سوریئ د رژیم مشر حافظ اسد که په هره شپه
کښې زر رکعته نفل لمونځونه وکړی اما دده موقف د روسانو
طرفداری وی دده دغسی اسلام او لمونځ نشی کولی
چه زمونږ وروری یا دوستی دده په طرف جذب او
جلب کړی او علاوه تردی چه دهغه دغه راز
عبادت مونږ ته قیمت نلری مونږ د هغه په مسلمانی
هم مشکوک یو ځکه چه یو مسلمان رئیس جمهور هیڅ کله
د مسلمانانو په خلاف د روسانو تر څنګ نه دریږی.
هغه اسلامی او غیر اسلامی هیوادونه چه زمونږ
د اسلامی جهاد او د مهاجرینو او مجاهدینو په مقابل کښې
بی تفاوته دی مونږ هیڅ کله د هغو سره د سیاسی
اقتصادی او فرهنگی علایقو د ټینګولو او ساتلو
ارزومند نه یو مثلاً مونږ ته د چین زمامداران
خلی د فلسطین ، الجزایر ، سوریئ او نورو دغسی

زمامدارانو ته ډیر قیمت لري . هغه هیواد ونه چه د افغانستان د مسئلې نه دخپلو سیاسي او نظامي گټو د پاره استفادې کوي یا غواړي مهاجرین دخپلو سیاسي او نظامي گټو دپاره استعمال کړي یا داچه په راډیوگانو کښي په زړه نازړه الفاظو او کلماتو د مجاهدینو او مهاجرینو په کومک او ملاتړ خبرې کوي اما عملاً د روسانو له داره هیڅ راز حرکت نه کوي د ارزکسانو له دې نه وروسته د افغانانو دوستان نشي کیدلې .

مونږ د ایران له اسلامي انقلاب ، د دغه نوي تاسیس شوي اسلامي جمهوریت او د دغه ورور هیواد له روحاني رهبرانو او په تیره بیا د حضرت خمیني د محترم شخصیت نه په سلگونو ځلې گیلې لرو ځکه چه د ده انقلاب او د ده د رژیم خیر د افغانستان جهاد او په جهاد ولاړو خلکو ته یوازې راډیوئي خپروني یا هم صرف د ومره وي چه د ایران له خوا زمونږ جهاد ته کوم خطر پیښ نه شو .

روسانو ترهکي ، امين ، ببرک او ددغې سلسلې نورو پښتو اوښکاره ملحدانو ، وطن فروشانو، جلا-دانو اونسلي خائينو چه ځني ئې دافغانستان قدرت ته ورسيدل اوځني نورئې قدرت ته د رسيدلو په لاره دي اوځه نورلا د روسانو د ذخيرو له ګرامو نو څخه تراوسه ندي وتلي څکه ئې پيژندل چه غوښتل کبني ډيرساده کارسندي همدغه سلسله اوروښ په ډيرظالمانه ، ماهرانه اوجدي توګه دډيرو پرمخ تللو اوتنظيم شوو پروګرامونو لاندي پرمخ بيولي اوپرمخ ئې بيائي .

دي روس زيږولي ډلي ، هتيلي اود انسان او-انسانيت د ښمنانو په افغانستان کبني پوه اومنور مسلمانان له کليو ، باندو ، ښارونو ، علاقداريو ولسواليو او ولايتونو نه يويو راټول کړل اورا ټولوئې اوپه ډيره ظالمانه اوغيرانساني توګه ئې ووژل اووژني ئې ترڅوچه روسانوته د وطن په تسليمولو کبني د وطن پرستو مسلمانانو د مخالفت

دغه انقلاب چه د نړۍ ټول مسلمانان ئې خونداو ثمرته انتظار د رلود ا و فکرئې کاوه چه د جهان د محکومو مسلمانانو په تیره بیا په جهاد ولاړو او لګیاوو مبارزینو ته به د اکسیر حیثیث ولري په عمل کښې ئې پیغو ټولو ارزوګانو او امیدونو باندې د مایوسۍ او ناامیدۍ اوبه وشیندلې او د افغانستان مسلمانانو سره ئې هیڅ ونکړه .

د افغانستان خلک به حتماً یا مری او یا به شرافتمند ژوند ته ځانونه رسوی په دوارو صورتونو کښې به د ایران او سنی رژیم او دغه راز ټولو مسلمانانو رژیمونو ته څه په لاس پاتې نشی .

هغه الجزایر او فلسطین چه د دوی د دښمنانو په مقابل کښې او د دوی د نجات او آزادۍ د پاره د — افغانستان مسلمانان جنګ او جهاد ته اماده وُ، د دوی سره ئې همکارۍ ، وروري او صمیمیت ښود ، اعانې ئې ورته ورکولې اما کله چه د افغانستان په - ولس باندې بده ورځ راغله او خلک ئې د روزګار د

ناملايماتو سره مخامخ شوه دی دوه رنځيرونو او هيوادونو
علاوه لدی چه اسلام او د افغانانو مرستی او همدردی
هيره کړه حتی د افغانانو د قاتلينو بر خوا و درېدل
داو ددوی پاداش چه افغانانو ته ئی ورکړ .

خکه نو دغه حزب د دغو هيوادونو په بېتولو
بخوانيو علايقو او ارتباطاتو باندی خطونه باسی
او تر څو چه دغه اوسنی ليډرشپ او ليډران او دغه
راز پاليسی پد غو هيوادونو باندی مسلط او حاکم وی
دغه حزب به د فلسطين ليډرشپ سره کومه علاقه
ونه مننی ، د فلسطين حقوق بايد قهراً او جبراً د
يهودو نه واخيستل شی مګر مسلمانانو ته بايد وسپارل
شی نه د برژنف تر څنګ ولاړ رسړي ته .

دا حزب برخلاف د هغو هيوادونو او قدرتونو چه په
جهاد د اسلام او مسلمانانو د منکرينو او مخالفينو پر ضد
فرض ګڼی د هغه چا په مقابل کښی ئی اول فرض بولی چه له خدای
او اسلام نه منکر دی او د مسلمانانو سره دښمنی کوی
همخواری چه اسلامی هيوادونه يو يو وخوری . د عربی

هیوادونو په جمله کښې د احزب د مصر، سعودي عربستان کویت ، بحرین او عربي اماراتو زمامدارانو ته چه د افغانستان د مسلمانانو په طرفداری ښکاره دریځ دری ډیر ارزښت قایل دی او په تیره بیا د انورالسادات شهامت ډیر ستائی . که څو لږو عربي هیوادونو همدغه راز دریځ درلودلی ممکن دا افغانستان د نجات مسئله به تراوسه ډیره پرمخ تللی وه . موږ سره ددی چه د اسلامی هیوادونو او د دوی د مشرانو نه بسپاس گذاره یو اما داتوقع هم لروچه هغه هیوادونه چه په دغه مورد کښې د محافظه کاره سیاست غوره کړی دی باید خپلو دغو سیاستونو ته تغیر ورکړی ، په موجوده سیاست او روش سره لدوی نه روسان او نه د افغانستان مسلمانان خوشحالیږی . د اسلام او اتحاد تر منځ په مبارزه کښې دیوه اسلامی هیواد او واقعی مسلمان زمامدارته دا نه ښائی چه محتاط او محافظه-کار واوسیږی .

د افغانستان خلکو د امریکی د خلکو او جمهور رئیس

نه دیوه ملحدوست دولت او قدرت او د بشر د حقوقو د حمایه کونکو په حیث دا توقع لرله چه حتماً به د افغانانو د حقوقو نه دفاع کوی او په طرفداری به ئی کلک دریځ ونیسی اما دغه اصلاً یوه غلطه توقع وه ځکه د امریکی حکومتونه غیر له هغه وختونو نه چه د اسرائیلیانو نا جایزه منافع په خطرکښی لویدلی او په تنګه ئی د دوی مسلا تړ کړی ، په نورو مواردو کښی د نړی د نورو هیوادونو او خلکو د مشروعو حقوقو جدی ملاتړ هم نه دی کړی . امریکا او امریکائیان د همدی دپاره مینځ ته راغلی دی چه د اعرابو په مقابل کښی د اسرائیلو د تجاوز حمایه وکړی او بس .

که روسیه پوهیدلی وی یا و پوهیږی چه امریکا په افغانستان کښی د هغه هیواد د عساکرو له موجودیت نه واقعاً او شدیداً ناراضه دی روسیه نشی کولی خپل عساکر په افغانستان کښی وساتی . روسان به د افغانستان په مورد کښی امریکا او غربی قدرتونه تر هغه وخته پوری په شک او تردید کښی وساتی ترڅو

چه په ایران او پاکستان کښې ګډوډي پیښه کړي
او دا موضوع څو میاشتې مخکښې هم د جهاد ودستهای
پښت پرده دکتاب په اوم فصل کښې پیش بیني شوې ده.

هر وخت چه روسانو په غږو هیوادونو کښې څه
پیښ کړه چه دغه کار د افغانستان د هضمولو دپاره
روسانو ته یو ضروري اقدام هم بریښي بیا به دغربیانو
او امریکې د ماغزونه د افغانستان د ظاهري طرفداري -
امید او ارزو وباسي او غربي هیوادونه به صرف د پاکستان
او ایران په غم کښې شي هغوی به له افغانستان نه
او روس به موقتاً د پاکستان او ایران نه تیر شي د -
روسانو په فکر دا به د افغانستان د هضمولو ښه طریقه
وي آما روسان پیی نه دي اګاه چه ددوی سره د افغانستان
هر فامیل ځانله جګړه لري نه کوم خاص قوم او ګروپ یا
سمت او تر څو چه یو فامیل هم پاتی وي دغه جګړه به
دوام لري .

دا حزب دچین د رژیم تند او صریح موقف چه د
روسانو د توسعه طلبی په مقابل کښې ئې غوره کړي ستائي

او له خپل دغه غمشریک همسایه څخه خوښ دی او د دغې دوستۍ واقعیت ته ډیر ارزښت ورکوی او د دغه دوست هیواد دغه دوستانه او انسانی دریځ سره هیڅ کله هیر نکړی . د افغانستان خلک د الحاد د نابودۍ او هر راز پردی تسلط نه ( شرقی ، غربی ، نیم شرقی ، نیم غربی ) د خپل هیواد د نجات د پاره جنګیږی مګر څنی او نه تثبیت شوی اطلاعات وائی چه د چین واکداران چین ته متمایل څنی جریانونه تقویه کوی ترڅو چه د افغانستان راتلونکی قدرت په لاس کښی ونیسی او د دغه جریان څنی کسانو په افغانستان کښی د ننه او د باندی خپل مستقیم او غیر مستقیم ارتباطات د چین سره برقرار کړی او چینائی اسلحه او نوری مرستی د څینو غربي موسساتو د لاری د وی ته ورکول کیږی . د احزب دغه رنګه افواهات تردیدوی او مصمم دی چه د چین هیواد او د هغه زمامداران به هیڅ کله په دغسې شرایطو کښې پخپله ګټه بهره برداری ونه کړی او په افغانستان کښه به روسی کمونیزم په چینی کمونیزم

تبدیل نه کاندی ځکه چه چینایان پوهیږی چه
افغانان په هیڅ قدرت دکمونیزم منلو ته حاضر
ندی له هرځایه چه وی او په هر رنګه کاسه کښې چه
ورکاندی شی دګردنو په پیاله کښې وی یا دجانان په
پیاله کښې . هغه څه چه موږ ئې غوارو دتل د پاره
اسلام دی او بس .

اندراګاندی دروسانو سره دا بډو مشورو نه
وروسته دسنجیده او تنظیم شوو پلانونو سره بیا
دجهان دمسلمانانو د تباهی او دهندوستان دمسلمانانو
دوژلو دپاره صحنې ته راغله او غواړی چه دد غو پلانونو
په تطبیق کولو سره په هندوستان او نوره نړی کښې
مسلمانان تباه او تخریب کړی .

د احزب عالم اسلام ته دمتوجه شوو خطرونو
او تخریباتو د مینځه وړلو د پاره په مسلمانانو باندی
علاوه دروسانو ته دا ندرا او دهغې دارودستې د
الحادپاره هم جهاد فرض ګڼی ترڅو د هندوستان
مسلمانان دهغې دخطرونو او دسیسونه خلاص شی

هماغسې چه د ایران انقلاب یوانې او یوانې د پخوانی بادشاه د نابودی او دخو تنو امریکائی بندیانو ته متوجه دی ، عربانو بټول اسلام داسرائیلو سره په مبارزه کښې خلاصه کړې دی او د نړی د نورو مسلمانانو سره چندان علاقه نه لري او په هندوستان کښې د مسلمانانو روزمره قتلونه او د دوی رقتباره وضع د مسلمانانو ، اسلامی قدرتونو او دعربانو هیر شوی دی . د احزب د عالم اسلام توجه د هندوستان او کشمیر د مسلمانانو غم انګیزی وضعې ته را اړول غواړي . په نتیجه کښې د احزب بیا د بنګله دیش ، اندونیزیا مالزیا ، جبوتی ، او د قبرس د مسلمانانو د مشرانو څخه قدر شناسی کوی او په صراحت سره د اعلانول غواړي هر هغه فیصله چه د افغانستان د سرنوشت په باره کښې د نورو مسلمانانو هیوادونو د مشرانو له خوا وشی هغه دی حزب ته د منلو وړ نه دی که څه هم نړیوالو د افغانستان د پیښو په باره کښې دا اوسه پوري ډیر کم کار کړي دی

کارکوی . مونږ نه غواړو چه له مونږ نه نور اسلامی هیوادونه سیاسی او اقتصادی بهره برداری وکړی.

۷ - مونږه مهاجرین نه یوازی په دی لحاظ دپاکستان د صدر ضیاالحق صاحب ملګری او طرفداران یو چه چه ده مونږ ته پناه راکړی ده بلکه پدی لحاظ مونږ د هغه دیر طرفداران یو چه د اسلام او الحاد ترمینځ په دغه سنګاره مبارزه کښی دی اولین زمامدار دی چه دپاکستان دمینځ ته راتللو نه وروسته پدی هیواد کښی دحکومتی اجراتو او مقرراتو د اسلامی کولو د پاره اود شریعت په انفاذ باندی لګیادی .

نوپه مونږ مسلمانانو دهم لازم دی چه د اسلام د طرفدارو زمامدارانو په هرځای کښی چه وی په ټینګه طرفداری او ملاتړ وکړو .

مونږه مهاجرین څومره چه د جناب صدر صاحب اودده دحکومت طرفداریو او ملاتړ ئی کوو په

هغه تناسب په پیښورکښې د پاکستان د حکومت له

ورو ماموریو خاصتاً له هغو ورو ماموریو څخه چه

د مهاجرو په دفترونو کښې [redacted]

[redacted] کار کوی [redacted] لرو ځکه چه

دوی تل د مهاجرینو د تباهی ، بربادی او زوروړلو

کوشش کوی ، د مهاجرو هیڅ کار بې له رشوته

نه اجراکوی ، د خارجي مرستو او اجنا سو سهیمه

د دوی د رشوتونو په خاطر کوم ثابت شکل نلری -

بلکه که چا رشوت ورکړ په هره میاشت کښې هرڅه

اخیستی شی او که چا ورځه ورنه کړه هیڅ شی هم نه ورکړی

لکه کمال نامی غوندی داسی مامورین هم شته چه د

مهاجرینو په بعضو حزبونو باندی د پیپلیانو تاپي

وهی ځکه چه دغسی پارټۍ رشوت نه ورکوی

ظلم نه منی . دا مامورین تګیا دی مهاجرین مجبوره

کوی چه بیرته د ببرک او د روسانو تسلط ومنی

دوی پخپلو اجراآتو کښې د پاکستان د صدر صاحب او

نورو حکومتی واکدارانو نظریات نه منعکس کوی

او مبارزی سره مخامخ نشی او ددوی د وطن فروشانه اعمالو مخه ونه نیول شی اما ډیر د خجالت ځای دادی چه سره ددغسی وطن فروشانه اعمالو بیا هم ددغی ډلی، تیپلی خلک لکه کارمل غوندی یو وطن فروش د ۱۳۵۹ کال د سرطان د میاشتی په یوی خطابی کښی چه له کابل راډیو نه برودکاست شوه د سپی پوستکی په مخ کش کړ او بیائی هم د وطن خواهی لافی ووهلی او وئی ویل چه وطن زموږ ناموس او شرف دی او چا ته ئی نه ورکوو. دغه څوک چه خپل دغه ناموس اپیارزه روسی عسکرو ته خوشی کوی، څوک پوهیږی چه دغه بل ناموس به څنګه وی.

مونږ په پیښور کښی د مهاجرو په ډیرو اجراأتو باندی هم تقریباً دغه د ظاهرخان د وخت فضا او هوا اشرغور- خولی دی، واقعی مجاهدین او نیک سرشته خلک تنبیه تحقیر او توهین کیږی، مقابلتاً بد او ګمراه خلک تقدیر او تحسین مومی او په امورات و باندی کمونیزم یا کمونیزم پسنده اجراأت مسلط دی مثلاً عین

بلکه دهغوی پرهند فعالیت کوی او ددوی دغه وضعه ورو ورو د مهاجرینو او د پاکستان دحکومت ترمینځ دغه د همیبت او وروری فضا خره پره کوی او ذهنیتو نه مغشوش کوی کوم چه املاً موجود دی.

۸ - دا حزب په دسیوری غوندی د هغو خلکو، کورنیو او گروپونو ځیرنه او څارنه کوی چه دروسانو په امر او اشاره په مهاجرینو کښی دهر راز فحشا او فساد په خپرولو لگیا دی او غواړی چه مهاجرین بدنام یا هم منحرف کړی او لدی لیاره کوشش کوی چه جهاد ودروی. ددی حزب پیروان به په ټولو هوټلونو سرایونو او رستورانونو کښی ددغه خلکو په لټه کښی وی او دغه خلک به دخپلو اعمالو په سزا رسوی.

۹ - هغه تاجران چه په دی تاسف اوره شرایطو کښی بیا هم د امریکی او لندن ترمینځ په تجارتونو بوخت دی او په اوسنی جهاد کښی د بیطرفی اعلان کوی او د افغانستان دخلکو په وینو شرابونه څښی دغه راز تاجران به هم ددغه حزب دغړو د تعقیب

لاندی وی . دا حزب په دغه اسلامی جهاد کښې بیطرفی د روسانو ملګرتیا ګڼې او دغه راز احمق خلک او رذیل عناصر باید پوه شی چه دوی د بیطرفی په اصلی معنی او مفهوم نه دی پوهیدلی ، کله چه مملکت تباه کیږی بیطرفی یو احمقانه او ابلهانه دلیل دی او هغه څوک چه بیطرفی اختیاروی یا کافر یا ملحد یا وطن فروش دی او دغسی خلک باید حتماً نابود او محوه شی .

۱۱ - دا حزب غواړی چه د هغو ټولو خلقیانو او پرچمیانو لست چه په یوه شکل یا بل شکل احزابو ته ننوتلی دی او پدی توګه د افغانستان مسلمانان د روسانو او دغو احزابو د خلقیانو او پرچمیانو ترمینځ محصور شوی دی وروسته له تحقیق او تدقیق نه تکمیل کړی او دغو احزابو ته ئی وړاندی کړی که چیرې دی حزبونو څه توجه ونکړه بیا به دا حزب بخپله تصمیم نیسی .

همدغه راز دا حزب د هغو ټولو جرایمو، جنایاتو

چپاولگریو ، بی عزتیو ، تاراجونو، فحشا او هغه —
ضد اسلامی اعمال او د هغو جنایتکارو قوماندانانو
نومونه اولستونه تکمیلوی چه هلته او دلته ئی وکړل
او مبارزینو ئی په چیرهار او سرخرود کی ووژل . هغه
څوک چه پدی وخت کښی مبارز هندوان هم وژ نی
هغه د روسانو سنګار ته ملګری دی مسلمانان خو پریږده.
۱۲ـ د احزب هغه ټولی خارجی پالیسی ، روشونه ،
او سیاستونه چه تراوسه د نورو هیوادونو او
قدرتونو په مقابل کښی پرمخ بیول کیږی او بیول
شوی دی جلا ردوی ځکه چه ټول بی ثمره ، ګنګ ،
مجهول ، محافظه کارانه او ارتجاعی واو اسلامی او
او ملی غرور ته ئی صدمه ورسوله او د افغانستان د
مسئلی د حل کولو صلاحیت ئی بهرنی قدرتونو ته —
ورانتقال کړ . د اسلامی هیوادونو د خارجه وزیرانو
د کنفرانس تالارته د نورو د اسارت او سلطی لاندی
ننوتل د همدی بزدلی او سیاسی جبن نتیجه وه چه
ددغو ټولو منډو او ځغلو ځلو مقصد دا شو چه د —

ښاغلی قطب زاده دایران دخارجه وزیرله تللو سره هرڅه ختم شول. دایران په حکومت کښې چه افغانانو کوم دوست درلود هغه قطب زاده وچه د روسانو په دسایسو له مینځه ولاړ.

دجهاد پرمخ بیول، کومکونه په لاس راوړل او دمهاجرو د وضعې ښه سنبالول په بې حیثیتی، التماس اوتضرع سره نشو پرمخ بیولی، یوه داسې پالیسی او سیاست ته ضرورت دی چه کاملاً جبری، صریح او سراسر د اسلامی روحی او ملی غرورپه مطابق وی او په هرڅه کښې دوطن دمسایلونه پخپله دافغانستان خلک نمایندگی وکړی نه پردی هیوادونه.

۱۳ - داحزب دهیڅ گروپ، شخص، حزب او فرد سره شخصی دښمنی او عداوت نلری ددی حزب مخالفت دنورو سره دهغوی دکار په طرز، دخارجی او داخلی نادرستی پالیسی په تعقیب، دجهاد د طرز، تاکتیک او دیوه پلان په نه تنظیم او عدم دقت بانندی بنا دی که هریو له دغو حزبونو نه پخپلو گناهونو

اوخطاګانو اعتراف کوی اوواقعاً سمیږی او داسلام
واقعی ګټه او د وطن د واقعی نجات لاره نیسی د غه حزب
حاضردی چه بې له کوم امتیاز نه د هغه سره یوځای
شی ځکه چه مونږ د احزابو فعالیتونه ، نیک عملونه
او د دوی د ښو پیروانو جهاد هیڅکله نشو هیرولی
او نه هغوی ته په عادی نظر ګورو .
داحزب ټول داهل ، متقی او صالح حزب ، شخص
او ګروپ ملګری ، حامی او پیرو دی او نه غواړی
چه پدغه مورد کښې د سیاست تابع شی .
۱۴ - که داسی یو اعتماد منځ ته راشی چه واقعاً
اساس ، بنیاد او طرح ئې د واقعیتونو ، حقایقو او
د اسلام په واقعی روحیه بناء وی او د تخریب لیاری
ئې مخکښې له مخکښې په دقیقه توګه او سنجیده ګی
سره ټول شوی وی او د هغسی خلکو له خوا منځ
ته راشی چه د اسلامیت ، تقوی او اهلیت ښه
شهرت ولری ، د اسلام او افغانستان منافع د هرڅه
نه پورته او برو ګڼی د احزب ئې په ټول طاقت سره

ملگرتیا ته ولاړ دی.

له هغه وخته چه اسلام ، افغانستان او د
افغانستان خلک ، د دوی نوامیس ، شتمنی او حقوق
د روسانو او روسی عناصرو د تاخت وتاز ، خطر، دښمنی
او تیری سره مخامخ شول په پیښور کښې اسلامی ډلو
او حزبونو د هغه د دفاع د پاره یخپلو کښې د یوه اتحاد
د منځ ته راوستلو په خاطر خوځښې سطحی او سرسری
قدمونه اوچت کړه او تړونونه ئې سره وکړه مگر
یوه اتحاد او تړون هم کوم مثبت او عملی نتیجه -
ور نکړه او دغه رنگه ټول سطحی او ظاهری اتحادونه
وروسته له څو میاشتو یا له منځه لاړل یا پرته له
نش نامه نه نورڅه ورپاتې نه شول ځکه چه غیر
د حزب د منافعو نه نورڅه پکښې نه و. مثلاً د پنځو
حزبونو ترمنځ د دغه اوسنی اتحاد نتیجه دا شوه چه
هر یو هغه چه د اسلحې د اخیستلو د پاره د اتحاد د فتر
ته عریضه ورکوی اتحاد ئې یوه حزب یا بل حزب ته
راجع کوی او کوم کسان چه احزابو ته عریضې ورکوی

هغوئ نی اتحاد ته لیږی. جهاد او خلک د اتحاد او حزبونو ترمنځ گیر شول ، جهاد سقوط وکړ مگر مسئول شخص هم معلوم نشو . ځکه نو ویلی شو چه دغه اتحاد فقط د جهاد د سقوط د مسئول شخص د نه معلومولو او سنبودلو د پاره یوه ډیره عملی او موثره وسیله شوه . پرون سږ کال چه دغه اتحاد موجود نه و په سرحدی ولایاتو لکه کنړ ، لغمان ، ننگرهار او پکتیاکښی د حزبونو پیروانو جهاد پرمخ بیوه اما ددغه اتحاد د راتلو سره اوس چه کوم جهاد هلته روان دی هغه د هغو ولایاتو د خلکو له خوا دی نه دا حزابو د پیروانو له خوا .
اما برعکس د بی اتفاقی ، دښمنی او خصومت دپاره چه کوم عملی حرکتونه ، فعالیتونه او قدمونه په پیښور کښی اخیستل شوی دی یا اخستل کیږی هغه ډیر عمیق او دقیق دی . همدا وجه ده چه په افغانستان کښی د جهاد د واقعی مرکزونو او سنگرونو ترمینځ - هیڅ راز ارتباط ، تفاهم او نږدی والی نشته

قومونه ، ولایات او د جهاد سنګرونه یو له بله
یو یو لرې کیږی ، جهاد مخ په سقوط روان دی
د روس کشی په ځای مسلمان کشی شروع شوی ده
د هیڅ حزب او امیر له خوا د جهاد د تنظیم ، ترتیب
او پیشرفت دپاره هیڅ راز پروګرام یا مقررات
وضع نه شول ، په حزبونو کښی خلقیان ، پرچمیان
د هر امیر ، هر د کار سړي او مقتدر غړي نه لګه د
پیچک بوټی غوندی چه د غنمو له هر بوټی نه خوځلی
تاو راتاو شوی دی تاو را تاو دی او یو بل ته د نږدی
کیدلو د پاره نه پرېږدی .

د جهاد کنترول او اداره په همدی علت وار په
وار او ورو ورو د مسلمانانو د لاسه اوځی او د دغو
خلکو په لاس کښی لویږی . د روسانو او روسی
عناصرو نفوذ او قدرت د مجاهدینو او مهاجرینو
د لری کولو او تیت تیت کولو دپاره حتی دی درجی
ته رسیدلی دی چه اوس د ولسوالیو په لوړ
داره واره مرکزونه او د قدرت وری هستی

جوړیږي او هر ولایت په خوښولو وپیژل کیږي دخلکو، قومونو اوولایاتو ترمینځ واقعي پیوند ارتباط او اتحاد له مینځه لاړ اوپه عوض ئې هر ولایت کښې دولسوالیو دخلکو ترمنځ اتحادونه مینځ ته راغلل . دادی دهغه اتحاد ماهیت چه دغسې نور اتحادونه ئې وزیرول او مجاهدینو ئې نور هم توټې ټوټې کړې . په دغسې شرایطو، حالاتو او دردونکو محیط کښې بیاهم حزبیان غیر دحزب د منافعو نه نورشي ته متوجه نشول له یوی خوا نوی حزبونه جوړیږي او دبلې خوا په هر حزب کښې دننه څوڅو نور حزبونه دتشکل په حال کښې دی .

دا اسلامی انتقام حزب دخدای رضا، دجهاد صحیح پرمختګ اوموفقیت، دافغانستان نجات، د خلکو آزادی اوله دغه روزمره اوهرراز تحقیر، توهین، سپکاوی اوبې عزتی نه دمهاجرینو او مجاهدینو خلاصول، په یوه واقعي، وسیع، اسلامی

مضبوط اتحاد پورې مربوط ګڼي . که روسان د
افغانستان نه وځي او دغسې یو اتحاد موجود نه
وي یا دغسې اتحاد مینځ ته رانشي او زموږ ـ
همدغه حال وي چه اوس دی بیا به هم زموږ
ورځ ښه نشي دا زموږ بې اتفاقي او کړو وړو دی
ده چه وطن ئې روس ته پرېښی نه د روس قدرت
یا د هغه ټانکونه او طیارې . که د اتحاد معنی مو
همدغه وي چه د اخوان یا د دوی څو حزبونه سره
یوځای شي یا مولویان او ملا صاحبان سره یو
شي یا د دوی او هغوی ترمینځ دې یووالی او
نږدې والی راشي دا کار نه اتحاد دی او نه د
وطن په درد خوري او نه به دوی یوځای شي .
هر هغه حرکت او فعالیت چه په دغه نیت ، تنګ نظری
او محدود فکر سره شروع شي هیڅ کله نه ترسره کیږي
او لکه څنګه چه تر سره نه شوه .
موږ باید د داسې یوه اتحاد بنیاد او تهداب
کیږدو چه د خدای رضا پرې حاصلیږي ، د ـ

سري ديوه حزب يا د مهاجرو قدرتونو له خوا دخوګيانو د شيزادو قومندانانو ته کار کيږي او همدغه سړي د ببرک له خوا هم د شيزادو دعلاقدارۍ په حيث منل کيږي او په يوه نفربانډي دوه اعتماد کوي هغه وضعه او روش چه دوه کاله مخکښې د مهاجرينو په مقابل کښې موجود و يو کال مخکښې هغې وضعې تغير وکړ او سږکال نظر پروسږکال ته هم وضعه خرابه او بدله شوه او معلومه نده چه راتلونکي کال کښې به په مجاهدينو او مهاجرينو باندې څه راځي .

د جهاد د مېنځ راتللونه ورو سته يو تعداد د وطن پرسته او واقعي مسلمانان د نامعلومو، مجهولو او مرموزو عللو په اثر او بې له دې چه د کوم ګناه او خطا مرتکب شوي وي په افغانستان کښې د ننه د بيلو بيلو جبهاتو د قوماندانانو له خوا چه په بيلو بيلو احزابو پورې تړلي دي له مېنځه لاړل او ووژل شوه او د جامعي او احزابو د مسلمانانو د هينتونو د مغشوش کولو او هغوى ته د فريب ورکولو د پاره پدغو وژل

بسم الله الرحمن الرحيم

فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ○

خدائ غالب او بدل اخيستونكى دى

# ولې او دڅه دپاره

# اسلامي انتقام

ليكونكى :- عزيز الرحمٰن "الفت"

د حزب مؤسس

بسم الله الرحمن الرحيم

فمن اعتدى عليكم فاعتدوا عليه بمثل ما اعتدى عليكم

والله عزيز ذو انتقام

# ولی او د څه د پاره

# اسلامي انتقام؟

لیکونکی :- عزیز الرحمن "الفتاح"

د حزب مؤسس .